# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست دوه میاشتنۍ خپرونه



د کندهار سار یوه برخه






# کندهار

دیني، علمي، ادبي، اجتماعي، تاریخي

**دوه میاشتنۍ خپرونه**

د ۱۴۲۰ هـ سپوږمیز کال
دربیع الاخر او جمادی الاول میاشت
د ۱۳۷۸ هـ لمریز کال
دزمرې او وږي میاشت

د تاسیس کال: د وري میاشت ۱۳۳۹ لمریز کال
د دوهم ځل خپروني کال: ۱۴۱۹-۱۳۷۷
پرلپسې ګڼه: څلرمه د دوهم کال دریمه ګڼه

**سر پرست: ملا عبدالحی مطمئن**
**مرستیال: محب الله اسحاقي**

کندهار

پته: د کندهار د اطلاعات او کلتور ریاست دکندهار مجلې دفتر
تیلیفون: ۸۳۷۷۰۷_ فاکس: ۸۳۷۷۰۷ کوډ نمبر: ۰۸۱
پوست بکس لمبر(۱) چمن پاکستان
د امتیاز خاوند د اطلاعات او کلتور ریاست

د ګډون کلنۍ بیه
په هیواد کې دننه: ۶۰۰۰۰ افغانۍ
په ګاونډیو هیوادونو کې: ۲۰۰ پاکستانۍ کلداري
په لیرې هیوادونو کې: ۲۰ امریکایي ډالره
زده کونکو ته د تصدیق په لرلو سره په نیمه بیه باندي ورکول کیږي.

کمپوز او ډیزاین د الامارت کمپیوټر اداره
کمپیوټر سمبالوونکی:
*عبدالحکیم*

## په دې ګڼه کښې!




بسم الله الرحمن الرحيم

ألّذين آمنوا يقاتلون في سبيل الله والّذين كفروا يقاتلون في سبيل
الطاغوت فقاتلوآ اوليآءَ الشيطن إنَّ كيدالشيطن كان ضعيفاً

***ژباړه : - هغه کسان چي ايمان لرونکی دی ؛ جنګ کوی دوی په لاره د الله کښي (د دين د ترقۍ لپاره) او هغه کسان چي کافران شوي دی ؛ جنګ کوی دوي په لاره د شيطان کښي نو جنګ وکړئ تاسي له دوستانو د شيطان سره ! بيشکه چي مکر د شيطان دی ضعيف .***

***لنډتفسير :***

يعني څنګه چي دا خبره ښکاره ده چي مسلمانان د الله تعالی په لاره کښي او کافران د شيطان په لاره کښي جنګيږي نو بيا مسلمانانو ته د شيطان له دوستانو يعني کافرانو سره بلاتأمل جنګيدل ضروری دی . هر کله چي الله (ج) د دوی مددګار دی نو نور هيڅ ډول تردد نه دی پکار . او وپوهيږئ چي د شيطان حيله او فريب کمزوری اوضعيف دی او پر مسلمانانو باندي نه چليږي . له دي ځنی مقصد جهاد ته د مسلمانانو ترغيب او تشجيع ده ، چي د هغه ذکر بالتصريح په نورو آيتونه کي هم شويدی .

# الله (ج) ته د منلو وړ دین یوازې اسلام دی

ملا سردارمحمد «شکیب»

په آسمانی کتابونو باندي یقین او باور لرل : له ایمان څخه دی . خو ، له دي سره سره که چیري په همدغو کتابونو عمل وکړای شی ؛ نو الله (ج) ته د منلو وړ نه دی .

ځکه چي اوس د اسلامی شریعت نه علاوه بل هیڅ شریعت الله (ج) ته مقبول نه دی او هغه ټول الله «ج» منسوخ کړیدی . که څه هم د الله (ج) له لوري رالیږل شوی قانون وی . نو له دي نه څرگنده شوه ، چي کوم قانون د انسان په لاس جوړ شوی وی ؛ هغه نو هرو مرو الله «ج» ته د منلو وړنه دی.

اسلام هغه دین دی ، چي فطرتاً د بشر د جوړښت هر اړخ په پام کي نیسی .

انسان چي د دو مهمو څیزونو نه جوړ دی : لکه روح او بدن . او دی د دي دواړو د امتزاج او اعتدال نوم دی .

که چیري روح نه وی ؛ نو بدن یوه بي ارزښته ماده ده . او که بدن نه وی نو روح یوه غیر محسوسی هوا ده.الله (ج) له دي دواړو نه یو امتزاج جوړ کړ چي هم ورکي مادیت شته او هم روحانیت .

اوس موږ گورو چي الله (ج) د انسان لپاره کوم قانون جوړ کړیدی . او د ده لپاره یی لارښوونی وضع کړیدی ؛ په هغه کښي د اعتدال نه کار اخیستل شوی . یعني هغه د انسان د مادی او روحانی اړخونو خیال ساتی .

همدارنگه کوم هدایات چي یی وضع کړیدی ؛ په هغوی کښي هم په اعتدال ټینگار شویدی .

مثلاً په خوراك ، خوب ، خبرو ، عبادت ، کار او داسي نورو ... کي د اعتدال یا میانه روی لارښوونه شویده .

داچي اسلام په هر شی کښي اعتدال خوښ کړیدی ، او پیغمبر(ع) هم فرمایی : **«خیرالامور اوسطها»** (په کارونو کښي غوره کار هغه دی ، چي له اعتدال نه ورکي کار اخیستل شوی وی .)

**نو ځکه موږ ویلای شو چي اسلام د نفس د حقوقو خیال ساتلی دی .**

څرنگه چي انسان په فطری ډول په تدریج سره جوړ شوی او لوی شوی دی . همدارنگه الله (ج) د هغه د فطرت سره سم اسلام هم په تدریج ورته ښودلی . او په تدریج یی د هغه مسئولیتونه ورته څرگند کړیدی . ولی چي الله (ج) قرآن پاك په ۲۳ کالو کي را نازل کړیدی .

همدا ډول انسان فطرتاً کمزوری دی ، الله تعالی یی له دي سره سم د کم ځواکی خیال هم ساتلی ولی چي په انسان باندي په ځینو داسي حالاتو کي چي د مکلفیت د سرته رسولو توان پکي نه وی ؛ نو خدای پاك یی مسئولیت هم یا خو له منځه یوسی او یا یي کم کړي . د بیلگي په توگه : که دی په سفر کي وی نو نیم لمونځ ، روژه وربښی او که ناروغ وی ، د اودس کولو توان نلری نو تیمم او په ناسته د لمونځ کولو اجازه ورکوی .

که د مخمصي یا لوږي حالت پري راشی نو حرام څیزونه ورته حلالوی . ترڅو له مرگه ځان پري وژغوري .

خلاصه داچي انسان الله تعالی د هغه د خپل وس او ځواك په اندازه مکلف کوی .

په دي اړه فرمایي :

**«لایکلف الله نفساً إلا سعها»**

هیڅ یو نفس ته د هغه له وس

نه زیات تکلیف نه ورکول کیږي .
نو دا چي اسلام د بشر د فطری ژوندانه د ټولو اړخونو سره په فطری ډول تړاو لری . نو موږ ویلای شو چي اسلام د فطرت دین دی . او په ټولو دینونو کي د خدای (ج) خوښ دین دی .
له همدي کبله باید وویل شی چي الله (ج) د خپلي خوښي دین اسلام وګاڼه ؛ او هغه یی خپلو ځینو بندګانو ته تلقین کړ ؛ نو له بندګانو نه یی هیله څه ده ؟! هیله یی دا ده چي ده ته یی د دریو ځیزونو مسئولیت ورپه غاړه کړیدی
۱- د الله (ج) حق اداکول .
۲- د خپل نفس حق پر ځای کول
۳- د الله (ج) د بندګانو حق .

## لمړی د الله (ج) حق :

پر انسان باندي د الله (ج) لمړنی حق دادی چي د خپل باور او عقیدي لمخي هغه یو وګنی او بل څوك ورسره شریك نکړی . او ربوبیت یي د زړه له کومي تصدیق کړي .
دویم یی پر انسان عبادات لازم کړل ، لکه لمونځ ، روژه ، زکات ، حج او جهاد . خدای پاك له بنده نه په ریښتیني توګه د دي احکامو سرته رسول غواړي .

## دویم د خپل ځان حق :

پر انسان د خپل ځان لمړی حق دادی چي د خپل ځان ساتنه او حفاظت به کوی او خپل ځان به د هر ډول خطراتو نه ژغوري . له همدي کبله په اسلام کښي ځان وژنه حرامه شویده . او ځان وژونکی ته قاتل ویل شویدی .

دویم حق یی دادی چي خپل ځان به له ناروغی او خوارحواکی نه ژغوري . او د هغه ، څه ، مخنیوی به کوی چي دي له دي ستونزي سره مخ کوی . که چیري ناروغ او یا کمزوری هم شی ؛ نو غم به یي دیر ژر خوری او د معالجي بیړنی هڅی به کوی . همدا وجه ده چي په اسلام کښي د خپل ځان نه قصداً د خوراك او څښاك بندول منع دی .
د انسان پر خپل ځان بل حق دا دی چي د خپل عزت د ساتلو کوښښ به کوی . په اسلام کښي سوال (غوښتنه) کول ځکه منع دی . چي انسان ورکي بي عزته کیږي
همدا رنګه ډیر داسي ناوړه کارونه چي په اسلام کښي تري منع شویده . یو لامل یی دا وي چي د انسان عزت ورکي ونه لوټل شی .
پر سړی د خپل نفس حق په حدیث مقدس کي هم یاد شوي ؛ چي رسول الله (ص) فرمایی :
«إن لنفسك عليك حقاً»
پر تا د خپل نفس هم حق شته .

## دریم د بندګانو حق :

د الله (ج) بنده پر بل دا حق لری چي هغه ناحق ونه وژني او نه یی هم وځوروی . د هغه بي عزتی ونکري ، او حیثیت یی په پام کي ونیول شی . که کله ناروغ شی نو تپوس به یی کوی او مرسته به ورسره کوی . د مړیني نه وروسته به یی په جنازه کي ګډون کوی . په لاس ، ژبه او بل څه به ضرر ورته نه رسوی . چي څه د ځان لپاره خوښوی ؛ د بل مسلمان لپاره به یی هم خوښوی .
د الله (ج) له لوري پر بنده باندي مکلفیتونو ته مو دغه پورتنی څو بیلګي وړاندي کړي . ولی چي د تفصیل وس یي دغه لیکنه نلری .
اوس به راشو دي خبري ته چي الله (ج) خو خپل بندګان د بندګی لپاره پیدا کړی ؛ نو د بندګي نه هدف یوازي عبادات نه ؛ بلکه خپل ټول ژوند د الله (ج) د احکامو په رڼا کي تیرول دی .
د شیخ سعدی (رح) د یو شعر مفهوم داسي دی چي وایی : کوم څیز چي تاسو د الله (ج) له یاد څخه غافل کوی ؛ هغه دنیا ده . یعني په کومه خبره کي چي د الله (ج) حکم ماتیږي ؛ هغه دنیا ده . نور هرڅه دین (د الله (ج) ذکر) دی .
د قرآنکریم د آیة مفهوم دی چي خلاصون او ژغورنه ومونده هغه چا چي خپل ځان یی سپیڅلی او پاك کړ . او د الله (ج) نوم یی ډیر ډیر یاد کړ او لمونځ یی په پابندی سره ادا کړ .
حضرت عمر (رض) د تورات په لوستلو بوخت و ، کله چي یی درسول الله (ص) په څهره مبارکه ناخوښی محسوسه کړه ؛ نو دی پوه شو او ویی ویل : « زه راضی یم په دي چي الله تعالی زما رب دی ، او اسلام زما دین دی ، او رسول الله (ص) زما نبی دی . »
دغه وخت چي حضرت عمر (رض) کوم الفاظ وویل : په هغه کي نوموړی د الله (ج) په ربوبیت باندي رضائیت څرګند کړ

همدارنگه یي د اسلام په دین او د رسول الله (ص) په نبي منلو هم د پوره خوښۍ څرګندونه وکړه .

که چیرې کوم سړی د خپل نفس پیروي وکړي ؛ نو ښکاره خبره ده چې د هغه معبود همغه خپل نفس دی . د قرآن پاك د یو آیة خلاصه ده : چې : آیا تاسو هغه شخص لیدلی دی ؟ چې خپل نفس یې په معبودیت منلی وي .

او د علم او پوهې سره سره مونږ هغه ګمراه کړ . »

همدارنګه په یو حدیث کې راځي : چې هلاك دی وي د مال بنده ، یعنې هغه څوك چې خپل مال یې معبود ګرځولی وي . کله چې د انسان اعتقاد او باور په کوم څیز باندې شو ؛ نو بیا هغه د نورو شیانو په لوري نه ګوري . لکه چې په حدیث شریف کې دُعا ده : **الهی اسلام ماته تر ټولو څیزونو د خوښۍ وړ څیز وګرزوی .**

الله (ج) په دیني او دنیوی نظام کښې ځینو بندګانو ته پر ځینو نورو فوقیت او لوړوالی ښېلی دی . چې په همدې وسیله په خلکو کې ډول ډول صلاحیتونه لیدل کیږي .

که چیرې د ټولو انسانانو صلاحیت او وړتیا په یو ډول وي . نو بیا د دنیا نظام خرابیږي . ولې چې د ټولو شیانو صلاحیت په یو انسان کې ممکن نه دی . او د یوه شي صلاحیت که په ټولو انسانانو کې راشي نو بیا نور څیزونه همغسې پاتیږي .

نو مطلب دا دی چې په مختلفو انسانانو کې مختلفې وړتیاوې شته چې هغه د دنیوی نظام د جوړښت لپاره دی . نو په کوم چا کښې چې د یو کار صلاحیت پروت وي ، له هغه نه بیا هغه کار اخیستل چې وړتیا یې نلري ؛ ظلم ګڼل کیږي .

همدا راز له دیني پلوه هم ځینې کسانو ته د بزرګۍ او ځینو ته بیا د پیروی قابلیت ورکړ شوی وي .

د الله (ج) او د هغه د رسول (ص) امر دی چې هغه څوك چې د پیروی صلاحیت لري ، که دی د هغه بل چې بزرګ وي ؛ پیروي وکړي ؛ دا به یې د هدایت او لارښوونې لپاره وسیله وي . او که دی په خپل سر له بلې لارې آخرت ته د تللو هڅه کوي ؛ نو کیدای شي ، لاره ورکه کړي .

په اسلام کې له دیني پلوه سپین په تور ، تور په سپین او عرب په عجم ، عجم پر عرب برتری او لوړوالی نلري ، بلکه د الله (ج) په نزد هغه څوك لوړ دی چې سپیځلی او متقي وي .

د دنیوی انتظام او برابری لپاره دنیاوی فضیلت او برتري د منلو وړ نه دی . په دې کې د سړي لپاره دا نه ښایي چې پر نورو تکبر او غرور وکړي . بلکه د الله (ج) له لوري د ورکړ شوې نعمت په بدل کې د هغه شکر ادا کړي .

لکه چې د حدیث مفهوم دی ؛ ځینو صحابه کرامو (رض) وفرمایل : چې شتمن خلك خو به د ثواب ګټلو لپاره مالونه مصرف کړي ، او موږ خو هیڅ نلرو . نو آنحضرت (ص) وفرمایل : تاسو تسبیحات پیل کړی ، چې ثواب یې له دوی نه هم زیات دی . کله چې هغو شتمنو ته دا څرګنده شوه نو هغوی هم دا کار شروع کړ .

بیا صحابه کرامو (رض) وفرمایل تسبیحات خو اوس هغوی هم لولي . رسول الله (ص) وفرمایل چې دا د الله (ج) فضل دی ؛ چې ویې غواړي پر هغه یې کوی .

یعنې هغوي د دنیا او عباداتو په وسیله د آخرت لپاره ذخیره برابروی .

ښکاره خبره ده چې د دین او دنیا د نظام د ساتلو لاره چاره همدغه اسلامی دین دی . چې د الله تعالی په نزد د منلو وړ دی خو په دې شرط به د نظام په ساتلو کې مرسته کوی چې د اسلام په ټولو جزئیاتو او کلی قوانینو عمل وشی . د نورو دینونو او له خپل ځان نه د جوړ شوی قانون لاره پرېښودله شی .

پای ...

**مأخذ :**


**۱- الجمعیة میاشتنی خپرونه**

**۲- اسلامي نظام حیات**

# آیاتش په نامه جرګه دافغانستان اوسنی مشکل حلولای سي؟

محمد ولي خلمي

که دجرګي کلمه دشورا اواصلاح په مفهوم استعمال شي اوپه هغي کي ددیني مقرراتو پــه نظر کـی سره ددوستی اوملي جذباتو په احساس دیوي تولنی دبیلو مشکلا تو درفع کولـودپـاره جمیلـه مسـاعي پـه عمـل راسی. اوتولنه دترقی اونیکمرغی په خواوهڅوي ډیر دخیر اوبرکت عمل ګڼل کیږي اوتصویبونه ئي اسـلام مبـارک دیـن لــه نظـره داعتمـاد او اعتبـاروړدی. خو که داوسني تاریخي جرګي سیر اوخپل اجتماعي فساد منبع ته لږ څه متوجه سو په اشتباه کـي بـه ولویږو چي داسي جرګو په منځنیـو پیړیـو کـی هغـه وخت چي مرکزي حکومتونو او مشروعه قوانینو رواج نه درلود. ملوک الطوایفي ظالمو مشرانو اودملی منافعو ضد دښمنان او مطلق العنانه پـاچاهـانو دخپلـو مـادي اونفسي ګټو دساتلو دپا ره دځو غـیر ملـي او اجتمـاع منفروعناصرو دراتولولو او افکارواوعملیاتو څخه نـاوړه ګټه اخیسته او خپلي ناوړي هیلي بې دملـي مقرراتـو اوموضوعه قوانینوپه نامه پر مظلومـو اوبیـوزلی خلـګو باندي په زور منلې اوتطبیقولې.

داسلام مبارک دین په شغلو سره دراتلومجرد اوداسـی تولو غیر ملي اوانسان دښمنه دود دنواومقرراتو باندي دبطـــلان لیکـــه کـــش ســـوه. دالهـــي او امرواومناهیودتطبیقولولـه املـه دبشـر پـر مخ دصـلاح اوفلاح ورونه وپرانستل سوه. عدالت اوانصاف په وجودراغلي. دملـی وحـدت. وروړګلـوي . همکـاري مزي

پیاوړي شوي دفسق اوفجور دورکولواودالهي قوانینو دچلولودپاره تاریخی اودستایني وړ ګامونه واخستل سوه. اوس چي په افغانستان کي پو شمیر پیژندلی سوي کسان چي زیاتره ئي په پردیو هیوادوکی په ناز اونعمـت شـپې اوورځي تـیروي. اوډدي حـو صلـه اوتـوان نلــري چــي یوګړي دخپلو وطنوالو سره له نژدي وو یني او په حقیقي مشکلاتو ئي خانونه خبر کړي اودهغو درفع کو لـودپـاره پـه ملـي اواسـلامي هـود دمیړانـــي اوعمـــل میـــدان تـــه راودانــګی. غــواړي دافغـــان مجـاهداوغیورملت دغــه دشلوکالو مالی او ځانی قرباني چي دروسي استعمارڅخه دخپلي ازادي اوخاوري دتمامیت په حاصلولو کی ورکړی دی . پـه بـی اهمیتـی او بـی اعتنـایي وګوري . دملــي وحدت ننګ اوناموس سا تلو مجاهدي اوقربـانیکاني یـي دیوشخص اویاګورني اوطایفي دناوړو هیلو اوکتو ترسریي قربان کړي، خدای دي هر مسلمان افغان دداسي فایدو اوغیرعملي خیالا تودمرتکبیدلوڅخه په خپل فضل اوکرم وساتی.

ددغسي جرګو اجراات اومنصوبی زمـوږ دهیـوادپـه دغـه لنډمسیر کی دشر اوفساد دبلا ګانو په تسـلطید لـو سره دافغان ملت په ګټه نه دی تمام سوي دا څکـه چـي په داسي جر ګو کی جرګوال تقوا. دینداری. عدالت او ا نصاف. وطن دوستي په موازینو. نه دی انتخاب سـوي اودیوی مشخصي پـېژنـدل سـوي تو لنـی پـه اشاره ئـي اجراات اونصیب العینونه یې دلویو حکمرانانو. پـاچـا هانو دنفسي خواهشاتواوشیطاني اعمالودننګو لو اوپر ځای

راورلو تصویبونه داعلیحضرت محمدنادرشاه دپاچـا کیدلو. سردارمحمد داودجمـهوریت او ببرک کـارمل اوډاکټر نجیب درژیم دتایدولو په مواردکی په زغـر ده یادوالای شـو. دالځه چـی دغـو بیغیرتـانو یعنـی ببرک کـارمل او نجیـب پـه وطـن کـی دروسـی استعمارموجودیت هم تائد کړي و .

خیر اوس لا وخت سته چي پرخپلـو کـړو پښیمـانی ،وکړو اودبیاتکرارولو څخه ئي په نصوحا توبه وکـاږو. ددي دپـاره چـي اوس پـه افغانسـتان کـی پـوره امـن اوصلح قائمه سی. دوطن دننګ اونـاموس سـاتلو پـه موردکی دافغان مجاهد ملت خواري اوقربـانی عبثـی اوخوشی ولاړي نه سي. اودافغان مسلمان ملـت دزړه یوازنـی ارمـان چــی داسـلامی شـریعت دقوانینـو تطبیقیدل . امن اوعدالت قا ئمول دی وخیـري. بـاید دطالبانو داسلامی امـارت سره دشر اوفسـاد دلیري کولو. ملی وحدت په راوستلو . تبعیـض اوامتیـازاتو اورکولو ظلم اوناروایه له مخه وړلو کی په خپلـو کـی په نره اوبي محا با ملاوترو . دملی حیثیـت دسـاتلو اوبین لمللی حقوقو دساتلو په مجا هدوکـی پـه سـر اوما ل ورسره ودریږو اوهیح ډول همکاري ورڅخه ونه سپموو.

که خدای نا خواسته داسی ونه سـی. پـه هیوادکـی دفسق اوفجور. ظلم اوناروا. بی اتفاقی اوبی حرمتـی جنجالونه او نتیجی خو مو دسـر پـه سـترګو ولیـدی چي ددغه هیواد ودان اومعموربنارونه څرنګه کنډواله اودخاوروسره برابر سوه. اوپر اوسیدونکو یـي دخپلـو او پر دوډلاسه داسی مظالم وسول چي دپر خولـه پـه راورلـو څخـه ئـي انسـان تـه ننـګ اوعاردریـږی. دخواشیني ځاي دي چي زموږ دهیواد زیاتري سیمي پـه معیـو بـانو او ګداګرانـو ډکـی دي . وروکـی هلکـوان اونجونی دناپاکیو پـه بیلرونوکـی دخپلـو ځانواورنـځورو کورنیودپـاره دورستو اوامباروشیانوڅه قـوت لا یحـوت برابروی اوپه د یری محرومـی اوخواشـینی شـپی اورځي صباکوی. زموږ ایمانی او وجدانی وظیفه ده چي تر هغو دغـو طالبـانو دازادي . خـاوري دتمـامیت اواسـلامی شریعت پلـی کولـو مجـاهده او هودترسـره سـوي نـه وي نوری غوښتني لکه دجرګو او اویادموکراسی حکومت چي اساسونه ئي زموږ دملـی حکومـت دچاروسـره همداوس سمون نه خوري ونه کـړو موږ بـاید طالبانوتـه موقـع ورکړو چي دوي داسلامي نظام دمقرراتو په تطبیقولو کـی پوره بر یا لیتو ب وموسی. طالبـان مسـلمانان او ربښتنـي افغانـان دی. هیـڅ افغـان دخپـل وطـن اووطنـو الـو پـه خرابولو اوناراضه کو لوخوښ ندی. هغـه تمنیـا ت چـی ملي مصلحت اوقومـی بنیګنه پکښی وی نـن بـه عملـی کیږی. بیره اوتلوار په کارنه ی. صبر سروردی. طالبان هیڅکله دعلم اوعرفان. تخنیک اوترقـی. مدنـی ژوندانـه دسـمولو سره محـالف نـه دي . دوی غـواړي دحـق اوعدالت دموازینو پـه نظر کـی لرلـو سره دخپلـو تولـو یسـروانو دپـاره دښه اوهوسـاژونـدلا ري چـاري برابـري کړی. بایددښمنانو په دسیسو اوطئوونه غولیږو چي دکلو کلو وروسـته پاتـه کیدلـو دنـه کـارکولو قصـور دطالبـانو پررژیم وتپو اودتولو مشکلا تو حل اوفصل کول په یوه وار اوسمدستي ددوي څخه وغواړو . خدای دکراري مل دی که صبر اوحوصله وکړو اوددښمنانو په دسیسو کښینوزی. انشاالله په ډیره لږموده کی به پرمشکلا تو بریالیتوب وموسی.

(وما توفیقي الا بالله)



# له ژوند کولو څخه زیاته استفاده

د محمدناصر «نصرت» ژباړه

څرنګه کولای سو ، چي د ژوند ترپایه پوري د ځوانۍ قوتونه او خوښۍ وساتو ، او د زوړوالی د ناکامۍ لړزان وهم او ډار له ځانو څخه لیری کړو ؟ و دي مقصد ته د رسیدلو لار ډیره ساده ، اسانه او داسي خلاصه کیږي ، چي په ځانو کي ځوان فکر او خیال وساتو ، د خپل قوی زړه طراوت او خوشحالۍ روح له لاسه ورنه کړو ، ایا دغه منظور څرنګه حاصلیدلای سی ؟

له ژوند څخه د ګټو اخیستلو لپاره چي حقیقي سعادت پوري تړلی دی ؛ دغه څلور رازونه او یا څلور تجربي شوی لاري دي چي باید هرکله په نظر کي ونیول سی .

لومړی معلومه کړی چي له ژوند کولو څخه څه شی غواړي یعنی په ژوند کي خپلي موخي (هدفونه) څرګند کړی ، چي دا کار مو وکړ بیا نو د هغوی د رسیدلو په باب غور او فکر وکړي .

زیاتره خلك سته ، هغوی بي له دي چي وپوهیږي له ژوند څخه څه غواړي ژوند کوی ، یعني د ژوند کولو لپاره کومه حرګنده او ټاکلي تګلاره نه لری، چي داسي خلك ګواکي په لوی لاس خپل ځان د زماني هر ډول پیسو او واقعاتو ته

سپارلی او سپاري .

ناست وی ، گوري چي څه پيښيږي ، کله چي څه پيښه سی : بيا نو په يو کار اقدام وکړي.

څرنگه چي دغه رنگ خلکو د ژوند داسي سمي او درستي لاري چي ومقصد ته په ورسيږي ؛ نه موندلی او نه غواړي چي ويې پيژني نو همدغه علت دی چي له سمي لاري څخه بيوتيدلی دی ، دا چي «سقراط» وايي (ځان وپيژنه !) مقصد يې د خپل ضعيفو او قوی خواوو معلومول ، او دخدای ورکړی استعدادونه دی چي د هر چا په وجود کي سته .

موږ بايد داسي خدايی اعطا او د خپلو باطني محرکو قوتو په قدر پوه ، او متوجه سوو ، چي څه غواړو او څرنگه کولای شو چي په خپلو پټو قوتو سره چي زياتره ورڅخه په غفلت کي يو! سرته ورسوو ، د ځان پيژندنی بله طريقه د خپلو ضعيفو نقطو معلوميدل او پيژندل دی ، هرڅوک چي په خپلو ضعيفو نقطو خبر ، او وپوهيږي چي ضعيفي او سستي نقطي يې څه شی، او په کومو مواردو کي کولای سی چي غلبه پر ومومي .

کله چي انسان د يو خوا پر خپلو قواوو او استعدادونو باندي پوه ، او د بلي خوا د ځان په ضعيفو نقطو خبر ، او ضمناً پوه سی په ژوند کي څه شی غواړي ، له کومي لاري ، څرنگه او له کومه ځايه يې بايد شروع کړي ، چي دغسي خلکو نو گواکي د سقراط په قول خپل ځان پيژندلی دی ، او چا چي خپل ځان وپيژاند يعني پر خپل ځان يې بشپړه احاطه درلوده ؛ د نيکمرغو کسانو څخه دی .

او هم بايد دا په نظر کي ولرو ، د خپلو کارو د بشپړولو او هدف ته د رسيدلو لپاره چي کومه نقشه طرحه کوو ، او هغه لاري چي ځانو ته يې غوره کوو ، نقشه يې بايد عملی او په زړه پوري وی . يعني د سری مقصد او وروستی هدف نبايد دير پست ، وړوکی او د پستئ له مخي تاکلی شوی وی .

د يو پوه په عقيده د انسان د ژوند هره لحظه بايد ستر هدف لرونکی وی ، يعني موږ بايد په لوړو او شرافتمندانه مقصدونو پسي تر داسي اندازي چي دی ډول مقصدونو ته د رسيدلو په فکر کولو سره مو ټول جسمی ، روحی ، مادی او معنوی قواوي په کار واچول شی قدم واخلو ، ضمناً زموږ عقل هم دا ښه بولي چي د خپلو خيالاتو او افکارو په مقابل کي نوی رڼا خپره کړو څو په هغي رڼا کي د ژوند داسي نوی لار ومومو چي زموږ د شرافتمندانه هدف لپاره غوره وی .

يو بل پوه وايی : خلک عادتاً په ژوند کي د خپل قواوو لږه برخه په کار اچوی که چيري شرايط ښه ترا مساعد وی نو بايد زياتي قواوي په کار واچول شی .

موږ بايد د هدف رسيدلو لپاره خپلي پټي قواوي څکه په کار واچوو چي خپل روح له هغو ځنځيرونو څخه چي تړلي يو خلاص کړو . دغه وخت به ووينو چي له خپل ژوند څخه ښي نتيجي اخيستلای سو .

په خدای تعالی باندي ايمان ، او د خلکو په باور او عقيده او يا د روح په اعجاز او د نفس د قدرت له لاري انسان کولای سی د خپل وجود په لويو قواوو سره زياته استفاده وکړي ، په لويو مصيبتونو ، غمو پيښو او د بشری درديدونکو دردونو او تکليفونو په وخت کي په وارو ، وارو تجربه شوی ده چي که انسان پر خدای تعالی ايمان ولري ، پرځان متکی ، په ژوند کي اميدوار ، او هغه روحی قواووي چي به باطن کي پټي ، او اوس يې (باطنی شعور) يا (روحی قواوي) او نور څه بولي ؛ په کار واچوی ، په ژوندانه کي به د برياليتوب پړاو ته ورسيږي .

په دې کې شك نشته ، چې په هر چا کې د بصيرت او وجدان داسې سرچشمه وجود لري چې د ژوندانه د محرکو عواطفو او عواملو څخه موج وهي ، او همدغه سرچشمه ده چې د خپل قوي ايمان قوت لاس ته راولي او لا د همدغه ايمان په قوت سره ده چې وکولای سي ؛ سمه لار واخلي .

بنايي چې زموږ باطني شعور دی د نقص ، ډار ، کيني (عقدي) گناه ، ماتي او بدبيني له ښکاره ضررو څخه ډك وي ، يعني موږ په خپله په خپلو باطنو کي ډيرو داسي ويرانونکو قواوو ته چې د نه ليدلو په حال کي د انسان دښمنان دي پرورش ورکړي وي موږ په خپله يو و چې د يوي خوا دغه د روح او د بشر د توفيق دښمنانو ته د ميکروبونو په شان موقع ورکوو ، چې زموږ په بدنو کي ځانونه داخل ، او چې ښه ترا تقويه سي ژوند مو را گډوډ کاندي .

ليکن د بل پلوه په موږ کي دا قوت هم شته چې خپل ظاهري او باطني شعور په سالمو فکرونو او انديښنو سره مسلح ، خپل روح د بدبينۍ ، يأس او تأسف له تورو تيارو څخه خلاص کړو ، او پر ځای د دي چي منفي عوامل پر موږ غلبه وموسی ، بايد وغواړو چي مثبت

، قوي ، د خير او نيکۍ اميد او نيکمرغی عامل مو د روح غولی (دگر) را روښانه او موږ د ژوند د ستر هدف رسيدلو لپاره سمي لاري ته هدايت کړي

دا يقيني ده چي ايمان او باور د عقل ، روح او زړه د قواوو کيلی ده ، د عقل او روح قواوي داسي موثري دی چي نه شوای کيدلای د هغو د اعجاز او امکاناتو لپاره يو حد ته قايل شو ...

پرڅه شی عقيده ؟ عقيده پر خدای تعالی ، عقيده پر خلکو او عقيده پر دي چي بلاخره حق ، عدل او نيکی بری مومي ، پر دي عقيده او باور چي تاسي کولای سی خپل مشکلات له محي څخه ليري او کولای سی چي پر ناوړو پيښو او واقعاتو باندي بريالي سی ، او هم پردي باور ولری چي هرکله کولای سی ، بيره او ډار له زړو څخه ليری کړی ، پر دي باور ولری چي خپلو ارزوگانو ته ورسيږي ، بالاخر د بشر پر ښه والي او د انسان پر راستی باندي باور او عقيده د اوسنی زماني لوی مصيبت دا دی چي ډير ، ډير خلك د يأس ، نا اميدی او افسوس قربانی سوی دی ، ځکه دوی دا احساس کوی چي پرخپل سرنوشت حاکم نه دی .

جنگ ، ظلم ، استبداد ، حيرت دغو ټولو د اوسنی زماني

انسانانو ته سختي صدمي پيښي کړی ، او له همدي کبله دي چي وينو زياترو انسانانو د مادی متفکرينو او ملحدانو (بی دينانو) لمني نيولی دی ،ځکه د يوي خوا د بشر په خير او صلاح عقيده او باور نه لری او بله داچي دنيا پوچه او خيالی بولی .

داسي کسان د خپل مزاج له ضعف څخه په غفلت کي پاته ، د دنيا او د ټولني ناوره حالات ، د بشر پر خير او صلاح باندي د نه باور او اميد سلب کيدو سبب شوی دی .

د عقيدي او باور څښتنان په هر ډول حالاتو او شرايطو کي خپل پاك زړونه له لاسه نه ورکوی ، يوازي له ختيځ څخه ولويديځ ته د لمر لويدل کافی دی چي په زړونو کي يی اميد او آرزو څرگندوی . د دي زماني خلك د زيات حرص لرلو له امله زياتره په اضطراب او پريشانی کی وی .

څرنگه چي تاسي کولای سی خپله روحی آرامی او د زړه اطمنان په هغه لمانځه کي چي د خدای (ج) په وړاندي يی کوی ؛ په هغو صوفيانه عميقو انديښنو او فکرونو کي چي يی لري ، د پاکو او اميدبخښونکو د عشق او فضيلت د کتابو په مطالعه او د هغو غوره اشعارو په مطالعه

او د پسرلي په روح بخښونکو ننداړو ، خلص داچي په داسي شانو سره چي ستاسي د طبعیت او مزاج سره برابروي لاس ته راولی . په هر صورت دغه هغه باور او عقیده دی چي یأس او ناامیدی له تاسي څخه لیری کوی ، او طبعاً مو نه پریږدي چي ستاسي په ژوند کي ماتې او ناکامی لار ومومی .

دلته لازمه نه ده چي موږ تاسي ته د خلکو د محبوبیت او د دوی په باب دلایل راوړو .

ځکه دغه ټکی څرګند ، او خاص بیا د هغو کسانو مسلك چي په ژوند کي بریالی شوی دی : ډیري ښي نښي یی لیدلی دی . په زیاته بیا د خلکو په نسبت رښتینی محبت لویه اخلاقی نښنه ده . لیکن هغه کسان چي خیال کوی د خلکو سره د محبت کولو له امله څه شی لاس ته نه ورځی ، بي له شکه د اخلاقی ، روحي او معنوی ماتي خواته وړاندي ځي .

ځکه انسان داسي نه دي پیدا سوی چي په یوازي سر دي نیکمرغه اوسي بلکه انسان د نورو خلکو سره ګډ ژوند کولو ته اړ دی ، او څوك چي په دي ګډ ژوند کي د آرامی احساس ، او د نورو خلکو د اړتیاوو د لیری کولو په فکر کي دومره علاقمند وی چي د نورو له اوږو څخه بار پورته کړي ، همدغه عشق او علاقه وه چي (جیمزوات) وایی د بخار د ماشین په اختراع او د (رایت) ورونه یی د الوتکی په اختراع و او (ګراهام بل) یی د تلیفون په اختراع سره موفق کړل کله چي تاسي له ټولني سره یوځاي سی ، داسي مثال لری لکه تاسي چي هم د ټولني له قوت څخه برخه وړی ، لیکن کله چي له خلکو څخه لیری سی داسي مثال لری لکه له خپل ځانه څخه چي بیزاره شوی یاست ، چي د دي ځانځانۍ تاوان په خپله تاسي ته رسیږي . د انسان حقیقی نیکمرغی هغه وخت ده چي په کار بوخت وی وختی چي تاسي په خپلو ټولو قواوو او علاقه سره په کارونو مشغول شی د اوږو بار مو سپك او د خوښۍ احساس کوی . ځکه کار د ژوند د نیکمرغۍ اصلی او ضروری عامل دی ، بوي مور به همیشه خپل زوی ته ویل :

« بي له کاره په بل شی مقصد ته رسیدلای نسسی ، که زه له کار سره بي له عشق درلودلو بل څه تاته په میراث در پرینږدم ، په حقیقت کي مي داسي هدیه چي د ارزښت تصور یی کیدلای نسی درته پریښي ده » .

زموږ کارونه موږ باید د ترقۍ او لوړتیا لوړته رهی ، او د کار کولو ډیر ښه طرز دا دی چي انسان وکولای سی خپلي قواوي او حواس په هغه کي متمرکز کړی . فقط په کار کولو سره کیدلای سی چي انسان د همیشه لپاره تکړه او ځوان پاته شی .

هغه څوك چي خیال کوی ، په کار کولو سره زړیږي ؛ احمقانه اشتباه کوی ، ځکه بیکاری یا د کار سره بي علاقتوب دی چي انسان زړوی ، د نن ورځي کار د سبا د توفیق مایه ده .

په دلاوری او امید سره ژوند وکړه ، دکار او کوښښ مزه وڅکی ، څو چي هر کله خوښ ، او له ژوند کولو څخه ښه برخه واخلی .



# څو شيبې د «تاندي سلګۍ» په ورشو کې


قاضي محمد حسن

«حقيار»


«تاندې سلګۍ» د مجلې په نړۍ کې د [illegible] څخه د [illegible] لاروی [illegible] شهيد ، حافظ ، عبدالبصير «عبرت» لومړی او وروستی شعری ټولګه ده . د «تاندي سلګی» شاعر شهيد «عبرت» څوك دی ؟ كله وزيږيد ؟ چيرې وزيږيد ؟ چيري يې زده کړی وکړي ؟ اوس چيري دی ؟ ، دا هغه پوښتني دی چي د «تاندي سلګۍ» په ليدلو له انسان سره پيدا شي . نو که څوك اروابناد «عبرت» له نږدي څخه نه پيژني او غواړي چي د ذهن په سکرين کي يی دا پورته را ولاړي شوی احتمالی پوښتني ځواب شی ! نو ، دي ټولو پوښتنو ته تنکی ليکوال او شاعر سردارمحمد «شکيب» د «تاندي سلګی» د غره په لمن کي ځواب ويلی دی . زه د اروابناد «عبرت» په اړه په لنډه توګه دومره وايم چي «عبرت» د ادبی بهير يوه خودرويه کړۍ وه ، د شعر د بڼ دا خاتول حماسو او سربښندنو په

چه کي زرغون شو يا په بله وينا ، د «عبرت» موهوبی استعداد په للمه کي راټوکيد . فطرت د الهام په باران حروب کړ ، او لا پوره غوړيدلی نه و چي د خزان د سيلی سپيره څپيړه يی وخوړه . «عبرت» په داسي چاپيريال کي شاعری پيل کړه ، يا شاعری ته هست او پيدا شو چيرته چي په هغه وخت کي د ده د مرغلرو پيرودونکی کم وو او د شعر بدرګه کوونکی او د ده د شعر د دکلمي په وخت کي د [ډير ښه ، واه واه بيايی ووايه ] کسان او تشويقوونکی د مرغی د شيدو په څير ډير کميابه وو خو بيا هم د نهيلۍ څپو دی وانه خيست بلکه ده په ډير متانت سره د نهيلۍ هيلي نهيلۍ کړي او ښه په نره د ادب په ډګر کي وځغليد تر هغي چي د ژوند ستوری يی د فانی نړۍ له فانی اسمان نه ولويد . د «عبرت» شعرونه تقريباً له يوي مخي حماسی رنګ لری او کله کله په کي په

ورو کي د مالګي په اندازه د عشق او ميني تصويرونه هم سترګګونه وهي . د ده شعر ، انقلاب دی ، حماسه ده ، تراژيدی ده ، تنبيه ، هڅونه او پاڅون دی دی د خپل کړيدلی او شهل ملت غيږ کي د مستقبل سينګار شوی ناوي ليدل غواړي . داسي روڼ او هوسا مستقبل چي د باروتو او وينو نه د ډکي ماضی ځای يی ونيسی ، دی د سوکالی او هوسايني ، او جنتی پيغام د منبر داعی دی ، «عبرت» افغانانو ته د ويار او پت نه ډك ژوند غواړی ، دی د اسلام بچی ، د اسلام په زانګو کي زنګيدلی او د اسلام په چاپير چل کي روزل شويدی . نو طبعی ده چي اسلامی عالمګير ايډيال يی په رګ رګ کي موجونه وهي .

سر به ستا په پښو کي ټيټ نکړم فلکه
د خودۍ له حماسو مي دنيـــا ټينګی
ای نــــــاصحه ! زما مينه پښتنه ده
پښتنـــــانه کله له جنګه په شا ټينی

تانده سلګۍ ۱۲ مخ

ای مســــــافره ای مسوده یاره
ښــکلی منزل دی لا مزلونه غواړي
دغه له تورو شپو نه ډکه دنیـــــا
ستا د سرو وینو مشـــالونه غواړي
**تانده سلگۍ: ۱۸ مخ**

«تانده سلگۍ» چي په منځنی کچ، اعلی قطع او صحافت فول کلر (پوره رنګین)، پوخ په سپین اعلی کاغذ په ۸۹ مخونو کي د زرو (۱۰۰۰) ټوکو په شمیر د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د ریاست لخوا د همدي ریاست په چاپخونه کي چاپ شویدی، د پښتي ښکلی او زړه بوگنوونکی انځور یی صالح محمد «صالح» په خپلو وریښمینو گوتو انځور کړیدی او د کمپیوتر چارې یی ملا سردارمحمد «شکیب» سرته رسولي دی.

د چاپ کال یی ۱۳۷۸ هـ لمریز، د ثور میاشت ښودل شویدی.

«تانده سلگۍ» د اطلاعاتو او کلتور د وزارت د سرپرست او د ادب د مینه وال محترم ملا امیر خان «متقی» په پیغام سره پرانستل کیږي په پیغام پسي د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د رئیس او نازکخیال شاعر محترم ملا عبدالحی «مطمئن» لنډ یادون او بیـــا نو د «د شاعر پیژندنه او د هغه په اړه څو خبری» تر عنوان لاندي د ملا سردارمحمد «شکیب» تقریظ ته ورته لیکنی په لوستلو سرې ته د شعرونو دروازه خلاصه شي.

د «تاندي سلگۍ» شعرونه اکثر د غزل بڼه لري او په لږه پیمانه نور صنعتونه یی هم کارولي دی.

که چیري څوك د «عبرت» شعرونه د ده له عمر سره پرتله کړی؛ نو دا به ومنی چي له شك پرته د ارواښاد «عبرت» یو نوښتگر او له خپل عمر نه مشر شاعر دی او په شعر کي یی د هنر او شعریت ملکه موجونه وهی. عبرت د خپل عمر څلیرویشتم پسرلی له ځان سره لحد ته وړی دی. او په ۱۳۷۶ هـ لمریز کال په شهادت رسیدلی دی اوپه تانده سلگۍ کي د ده د اتلس کلنی د ۱۳۷۱ هـ لمریز شعرونه هم ډیر دی. چي په کافی حد عمق پکي لیدل کیږي.

د نوموړی د دي شعرونو په لوستلو سره سړی ویلی شی چي که مرحوم «عبرت» ژوندی وی نو د عمر او تجربي په لوړتیا سره به یي شعر نور هم پوخ شوی وای. دي کي شك نشته چي په «تانده سلگۍ» کي هم د نورو شعری ټولگو په څیر له هره اړخه څنی شعری نیمگړتیاوي شته دی خو له نیمگړتیاوو نه یوازي یو ذات(ج) پاك دی اوبس.

او زه هم نه غواړم چي د «تاندي سلگۍ» هر اړخیز جاج واخلم ځکه چي د کومی ځانگړی گنی هیله تري نشته ده ځکه چي له تنقید او کره کتنی څخه موخه خپلو نیمگړتیاوو ته د شاعر متوجه کول وی او اوس خو «عبرت صاحب» په دنیا کي زموږ څخه د تل لپاره بیل شویدی خو خدای مو دي په جنت کي ورسره یوځای کړی.

او ما دي خبري ته وراندي هم اشاره وکړه چي «تانده سلگۍ» د مرحوم «عبرت» لومړنۍ او وروستۍ شعری ټولگه ده. له دي لیکني څخه زما اصلی هدف (آره موخه) د دي کتاب لنډه پیژندگلوی وه.

په پای کي زه د یو شاعر او د ادب د مینه وال په توگه د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د ریاست له محترمو مسئولینو او د دي کتاب د چاپ په کار کي زیار گاللونکو ته په ډیر اخلاص کور ودانی وایم چي د یو با احساسه، مجاهد او قهرمان شهید دا یو ارمان خو یی ترسره کړ او خدای دي زموږ مشرانو ته لا نور توفیق ورکی چي همدا راز د شهیدانو نور ارمانونه هم پوره کړی.

حو دا یوه ویـــا مي واوره هسی یوه شه
چي له مرگه وروسته بیـــا هم راپاڅیږم
هسی ورك که په ظـــاهر شمه له سترگو
خو معنـــاً به درته هر وخت ځرگندیږم
**تانده سلگۍ: ۲۱ مخ**



# دکتاب سره مینه

۱- کتاب داسې ښونکی دی چې دامسا او مترو کې څخه مو پرته روزي.

۲- هرڅوک چې ګټور کتاب له منځه یوسی لکه چې انسان ئې وژلې وی او هر چاچې انسان وژلی وی لکه جهان چې ئې وژلی وی.

۳- دشلمې پیړی دتمدن ښستې کتاب اومطبوعات دي

۴- ځینې کتابونه باید لږ وڅکل شي. ځینې سمدستی تر مری تیر شي او ځینی په ډیر پام سره ورو، ورو وژوول شی

۵- که چیری کتاب ستا عقل پیاوړی نه کړی. که چیری ستا پوهه پراخه نه کړی که چیرې ستا سپیڅلتیا غښتلی نه کړی هغه کتاب دلو ستلو او مطالعې وړنه دې

۶- کتاب ښکلی بڼ دی چې ګلان ئې دلو ستو له سیئو څخه راسپړل کیږی دمړو په هکله خبرې کوی او دژوند یو خبری ترجمه کوی

۷- په نړی کې چې بوازینی دوست کتاب دی له هغی نه می پرته بل شی ته اړه نه شته کتاب دیوه، بل روحونه سره نیږدی کوی او اړیکی ئې دومره سره ټینګوي چې جلا والی نه منی. دکینا ستو په وخت کی ئې په لمن کې ږدم او دخوب په وخت کی ئې په سینه باندي

۸- کتاب دي په وطن کښي داومن اندیوال او په مساپری کی ښه پیژند ګلوی دی

۹- که چیرې زموږ په هیواد کښی هرې کورنی یو ښکلی جیبی کتاب درلودی هرو مرو به زموږ توښبر روند عد ... شوی وای، زموږ ملی غوبښتې او هیلی به تر سره سوی واي

۱۰- تول کتابونه باید له لومړی مخ نه پلوستل سی خو دست کتاب باید له اخره پیل سی

۱۱- [illegible] په کتاب کی داسی [illegible] چې په ... کوی نه ویبی حکه چې هغه به ... [illegible] سره سری دی او ... په موده [illegible] سره سوی ...

۱۲- زه ډیر دوست ... نه لرم حکه چې ... سی خو ... لوستلي دی او ... وړحځه خوښ کړی خو په دې سر بیره که چیرې څوک ښه کتابونه راکړی ... په ... سره بدل کړم

۱۳- که غواړې چی له کتاب څخه ښه او غوره مطلب ... کړی نو ښخلس دقیقی کتاب ولوله او پنځه څلو یښت دقیقی دهغه څه په هکله فکر وکړه چې لوستلي دي دې

۱۴- دبشر ډیره ستره سپږښتنه کتاب دي

۱۵- لوږه او غریبی مې تردغه ځایه رسیدلی وه چې په کورکی می یو غاب اویو ه کاچوغه نه وه پاتې خوله نیکه مر غه چې له پلار څخه په میراث دوه کتابونه راته پاتې وو چې دیوه نوم "دسپیڅلی سړی اسمان ته درسیدو لار" او دبل نوم "صداقت او پرهیز" وو

۱۶- که چیرې یوه ورځ کتاب ونه لرم مینه به می په لیونتوب بدله شی

۱۷- هرڅوک چی دوه شیان ولري نیکمرغه دی. یو ښه کتاب او بل داسې ملګری چی دکتابو نو په ګانه سمبال وی

۱۸- دکتاب پاڼی دهغو وزرونو په شان دی چی زموږ روح دربائي په لور بیائي

۱۹- څوک چی کتاب لولی هغه دلوړو اخلاقو خاوندوی او هیڅو وخت یوازې نه وي

۲۰- نړی ډیر ګټور او ښکلی کتاب دی څوک چی کتاب نه لولی هغه ته ارزښت نه لري

دفرید احمد "ترین" رالیږنه

# وا اسلاماه !

ژباړونکي: ډاکتر نورالله [زمريا ني]

## ۲

جلال الدين له هماغه شپې وروسته له ارام او اسوده ژوند تيرولو سره خداى په اماني وکړه پوخ تصميم يې ونيو چې له تتاريانو سره به جهادکوي ددې عزم دعملي کولو لپاره يې يومياشت دخپل لښکر اونورو جنګي مهماتو په تيارولو اوبرابرولو تيره کړه. په ښارکې تينګې تينګې کلا ګاني اودجنګي خط په اوږدو کې مهمې مورچې جوړې کړې امير ممدود ددې کارو په سرته رسولو کې ورسره ملګري وو کله چې ددې فوځي تجهيزاتو دبرابرولو څخه فارغ شو او يولوى لښکر يې جوړ کړ نو ددښمن لوري ته دروانيدو ورځ يې هم وټاکله.

جلال الدين کله دخپل وخت دنورو پاچا هانو په شان پال کتونکو اومنجمينو ته زيات معتقد وو اوکله به يې په يو مهم کار لاس پوري کاوه اول به يې دهغى څخه نظريې او مشورې غوښتې نو کله چې دتتاريانو سره دجګړې کولو هوډ وکړ خپل خصوصي پال کتونکى يې راوغوښت چې دده تالع وګوري.

-ال کتونکى په کتاب نظر واچاوه وروسته له ښه غور څخه يې ورته وويل اې سرداره! ته به تتاريانو ته ماتې ورکوې اوهغوى به تاته ماته درکوي خو ستا په کورنۍ کې به يو ماشوم دنيا ته راشي تتاريانو ـه به ابدي شکست ورکړي اوديوې لوى اوپراخې سيمې واکدار به شي

جلال الدين وويل دادې څنګه خبره داته وکړه چې تتاريان به ماته شکست راکوي اوزه هغوي ته. پال کتونکى دسلطان له ويرې لږ شيبه سکوت اختيار کړ وروسته يې ورته وويل سرداره ته به هغوي ته شکست ورکوې او هغوى به تاته

امير ممدود هم په دې صحنه کې حاضروو پوه شو چې جلال الدين دپال کتونکى له خبرو څخه ډير ناقراره اوپه تشويش کې شو له دې وډاريده چې نکه جلال الدين له خپل تصميم څخه ونه ګرځي. نو پال کتونکي ته يې مخ راواړاوه ورته ويې وي اې ناپوه! په غيب ويلو په خداى پاک پرته څوك نه پوهيږي موږ ته ددې دپاره راغوښتى وې چې سلطان ته يونيك زيرى ورکړې نه داچې هغه په تشويش او اندنيښنه کې واچوې بل داچې سردار له هغو کسانو څه نه دى چې ستا له پيشګويې څخه به په ويره کې شي او له خپل تصميم څخه به وګرځي

تالع کتونکي څه شيبه پټه خوله شو اولکه دحال په ژبه چې ويل( دازما ګناه نه ده دکتاب ګناه ده) خو وروسته يې بيا سکوت مات شو زياته يې کړه زه دسلطان نو کريم که غواړي هغه ته به ربښتيا ربښتيا خبري وکړم اوکه غواړي نيك زيرى به ورکړم

جلال الدين ورته وويل غواړم چې ربښتيا راته ووايې او بې له ربښتيا ويلو بل څه نه غواړم دا راته ووايه هغه څوك چې زما له کورنۍ څخه تتاريانو ته ماتې وکوي اوداسلامي خاورې به يود لويه برخه به په لاس ورحى څه وخت دنيا ته راځي؟

پال کتونکى بخپل کتاب نظر واچاوه په حساب کولو يې شروع وکړه وروسته يې وويل داماشوم به په همدى اونى کى دنياته راځي

جلال الدين لکه دپال کتونکى خبري يې ډيرى خوښي سوى وي دممدو؟ په طرف وکاته مګر امير ممدود دجلال الدين دالږ شيبه خوشحالي دهغه دنه خيرکتيا امل وباله پوه شو چې پال کتونکى خامخا دسلطان دمايتي په اوميدواري پوه حاصله کړي داپرې سخته نه ده چې غيب ويل وکړي اووائي چې هلك به پيداکيږى که انجلي پيداشي بياهم هغه نه ملامتيږي ځکه دائي ونه ښوده چې هلك به خپله دسلطان زوي وي بلکه وه ئي ويل چې دهغه په کورنۍ کي به هلك پيداکيږى اودجلال الدين خپلوان خو په غزني اونورو

ښاروکي زيات دي اوشايد داسي
هم ورته معلومه شوي وي چي
دجلا ل الدين خور هم اميدواره ده
دولادت وخت يې هم نژدې دی نو
کيدای شي داهلك به قوي احتمال
په دي دوو ښځو کی له يوي څخه
وزيږي. دممدود په خيال کي
داسوچونه هم ګرځيدل چي دغه
تالي کتونکی اونور پال بينان چي
تالي ګوري تقديرونه بيانوي
دحالاتو او اوضاعويه هکله غيب
ويل کوي [illegible] له حرکتبا او
چالاکی [illegible] هر يوي
دخپلي هوښيارۍ په [illegible] غيب
ويلو معلومات [illegible] ممدود
په دی سوچونو کي [illegible]
ويره او انديښنه [illegible]
ورغله چي ورځه ددښځه زوی
اودجلا ل الدين ښځه لور وزيږوي
که داسي پيښه شي نو د جلال
الدين زړه به له کيني او بغض
څخه وچوي اوداکار شايد دده
دنوي ماشو په وژلو تمام شي.
ځکه جلا ل الدين ته داويره
پيداکيږي چي سلطنت او واکداري
دده دزويه نه پرته دبل چا په لاس
کی لويږي، امير ممدود په دي هم
ښه پوهيدو چي دپاچاهانو خوي
اوعدت دقدرت دانحصار په باب
څومره له کيني ډك دی که ددوي
کورني واك دبل چا لاس ته ورځي
نو په دي رابطه دخپلو ډيرو نژدي
خپلو انو اودوستانو په وژلو هم
باك نلري اونه ورڅخه لاس
اخيستونکي دي.
خوممدود بيرته دالله تعالی تقدير
لور همت ته متوجه شو په خدای
پاك يي له شيطانه پنا وغوښته
خان ته ئي داډ ورکا وه چي ددی
پال کتونکی خبری بی باوره دي
ښه داده چي څو ك کاملا ددوي
په نظريو او پيشګوئي ګانو
اعتبار اوعتماد ونکړي ځکه په
ډيرو تاريخی واقعاتو اوحقايقو
کي خبري دروغژني ثابتي شوي
مثلا عباسي خليفه معقم باالله
چي کله دعموريه دفتح قصد
وکړ دهغه وخت دمنجمينو
مشوره ورته داوه چي په دي ورځ
دي دی په نوموړي ښار بريد نه
کوي که بريدوکړي دتالو پرښابه
دی ماتي وخوري مګر خليفه
ددوي په خبرو باورونکړ په الله
ئي توکل وکړ خپل تصميم ئي
عملي کړ [illegible] هغه وجه دمنجمينو
[illegible] خلاف ئي
[illegible]
[illegible]
دي [illegible] امير ممدود ذهن څه
[illegible] ډيره [illegible]
وه چي جلال الدين دبل [illegible] په
خبرو او پيشګوئي ډير باور لري
ده به ليدل چي دخپل خان په
کاميابي اودتاتاريانو په ناکامي
به ئي يوځل زړه له خوشحالي باغ
باغ شو اوبيا به دځان په شکست
او دتاتاريانو په کاميابي دغمونو
اوانديښنو په دريابوکی ډوب
تلالای واوبيابه هغه نوی ما شوم
په خيال کي وګرځيد چي
واکداري به دهغه لاس ته ورځي
اوتتاريانو ته به دابد لپاره ماتي
ورکوي دي وسووسو اوفکر
ونوامير ممدود ډير سخت
خواشيني کړی و دورځي به
همدي انديښنو دهغه سينه تنګه
کړي وه اودشپي به بيا دي سوچو
نو خوب نه ورتلو تردي چي نور
ددي وسوسو له پټو ساتلو څخه
بلکل په تنګ راغی اودائي له
توانه وو ته چي نور داراز پټ په
سينه کي وساتي نوله خپلي
ښځي (جهان خاتون) سره ئي دغه
راز شريك کړ اوپال کتونکي
پيشګوئي ئي ورته بيان کړه اوهم
ئي داويره ورنه څرګنده کړه چي
که ددي زوی اودجلال الدين لور
پيداشي نو داخوشحالي به مو په
غم ککړه شي
جهان خاتون هم دخپل ميره له
دي څرګندونو څخه په انديښنه
کي شوه ځکه هغه دخپل ورور په
طبيعت ښه پوه وه چي دقدرت
په انحصارکي څومره مريض دی
مګر بيائي هم خپله اند تيښنه
ووېره له ميړه څخه پټه مسالله په
ظاهره به ئي امير ممدود ته ډاډ
ورکوه چي [illegible] له زړه
[illegible] ډير
زيات [illegible] امکان
ډيره لري خبره ده [illegible]
ددي دغه دزړه سوي ته
دخورلاسونه درازکړي
خوپته په زړه کي ډيره خوريده
الله ته به ئي دعجز اونياز
سوالونه کول چي دي ته لور
اوورورته زوی ورپه نصيب کا
خو دخدای پاك قضايه په بل څه
کي وه ددي دعاو اوانديښنو
دري ورځي نه وي تيري شوي چي
الله تعالی ممدود ته زوي اوجلال
الدين ته لورورپه برخه کړل
ددي حدثي په رامنځ ته
کيدودممدود ويري نور هم
حقيقت پيداکړ او غم ئي لاپسي
زيات شو جلا ل الدين ته چي
دلور دزيږ دني خبر ورسيد نوله

غمه اودرده ئي مخ تك تورو
واوښت دغمو نو اوقهرونو په
دريابونوكي ډوب شو دائي پوخ
باورشو چي دده سلطنت به يوه
ورځ نه يوه ورځ دده خورئي ته
انقاليېږي دغه اندنيښنو هغه
سخت نا ارامه کړ. اراده ئي وکړه
چي دغه نوي تولد شوي ماشوم له
نږدي ووينې نودخور دپو ښتني او
احوال په سي بهانه دهغي كورته
ورغي. نوى تولد شوي ماشوم
دمور په غيږ كي پروت دي
اوشيدي روي دجلا ل الدين
سترگي چي پري ولگيدي نو دغم
اوكيني څپي ئي له ورايه په تندي
اومخ كي شكاره شوي كه څه هم
ده كوشش كاوه چي دغه دغدر او
حسدنښي پټي كړي خو دائي له
توانه وتلي وه خور ئي هم دغه دغم
اوغصي اثار دهغه په مخ كي ليدو
او پټه په زړه كي نوليده. جهان
خاتون غوښته په ډير نرمو اود
ترحم په خبرو دورور دغه كينه
وددردلمبي سړي كړي اودخپل
تنكي ماشوم په نسبت ئي غلطي
اندنيښني كمي كړي خو دورودغم
جن اوغصه ناك حالت نه دخبروسر
ورڅخه ورك ونو پټه خوله ئي
اختيار كړه خو دډير زړه سوي
اودلسوزي په نظر ئي دخپل ورور
په طرف كاته اوداسي ورته
ظاهروله چي ددي كوچني ماشوم
په نسبت له ډير دلسوزي اورحم
كارواخلي امير ممدود دخپلي
ښځه دغه عاجزي اودجلا ل الدين
دغم اودرد اثار څارل نودخاموشي
داقلف ئي مات كړ دعا طفي په
لهجه ئي جلا ل الدين ته- مخ
واړاوه ورته ئي وويل اى سرداره:
داستا خپل زوى دى څيره ئي
كټ مټ تاته شويده په هيڅ شي
كي له ما سره ورتوالى نه لري
اوڅنگه ښه ئي ويلي (چي الولد
حلال يشبه بالخال ) يعني حلا ل
زوى ماماته شوي وى. جلا ل
الدين پداسي حال كي چي
مصنوعي مسكايي له خانه ښوده
اوخپل لاس ئي ددي ماشو م په
تندي ورتيرول ممدووده: داهغه
څو ك دى چي تاتاريانو ته به
شكست وركوى. ممدود دهغه
دخبرو په مينځ كي ور زياته كړه
انشاالله دخپل ماما ترسيوري
اوخدمت لاندي. جلا ل الدين
وويل. نه بلكه دى به زما
دپاچاهي وارث وى.
ممدود وويل: ماذ الله چي هغه به
ستا يا چهاى په ميراث وړي.
ستا دپاچا هي ميراث به وروسته
ستا له دراز عمر څخه ستا خپل
زوى امير بدرالدين ته رسيږي.
جلا ل الدين: پال كتونكي
خوماته دانه وويل چي زما دپاچا
هي اوسلطنت وارث به زما زوى
بدرالدين وي اوهغه به تاتاريانو
ته شكست وركوي
ممدود: اى سرداره، منجمين او
او پال كتونكي دومره لوړ هم نه
دي چه غيب گوئي وكړي
دهغوي په پيشگوئي اوپالو څان
مه غمجن كوه. دالله تعالى چه څه
قضاوى هغه به كيږي ډير ځله
دهغوي خبري او نظر ئي
دروغژني اوبي اعتماده ثابتي
شوي. ممدود كوشش كاوه چي
داترتيب دجلا ل الدين نظر له دي
ماشوم څخه دپال بينانو په طرف
وگرځوى اودهغوي دنظر ياتودى
بي اهميته كولو په باب جروبحث
وكړي جلا ل الدين هم نزاكتاپوه
شو چي زياتي خبري پايده نه لري
اودخپلي خور معصومانه نظر ئي
هغه كركه اوكينه چي ددي
معصوم هلك په باب ئي لرلو
كمه كړه دخجالت او شرمندگي
احساس ورته پيداشو څكه
خورئي په دومره عاجزي او
خواخوږي ورته كاته چي هغه ته
دغشي تر وارهم كم نه و
جلا ل الدين څه شيبه په زورسوچ
كي ولاړ اوداسي معلوميده چي
دهغه وجدان اوضمير دى سخت
ملامت كړى وى او په ټولو هغو
كينو او غمو نو ئي دپشيمانى
كرشه كش كړى نو دخپلي
خورطرف ته نـزدى شو پداسي
حال كي ستر گي له اوشكو
راډكي وي اوخپلي خور څخه ئي
دحال په ژبه دبخښني خواست
كاوه هغه په تنده مچ كړه اوداسي
ورته وښوده چي گويا هغه ددي
لوي ماشوم په باپ هيڅ بدنيت
نلري جهان خاتون بى له دي چي
هغه نه څه خواب وركړي په مخ
ني مړي اوښكي راروانې وي
اودخپل وروږسره دخوا خوږي
اظهارئي كاوه. په دي حالت كي
خبر راغي چه تاتاريان مروي ته
داخل شوي او اوس دنيشاپور په
طرف روان دي ددي ځاي خلك
ئي ټول تر تيغ تير كړي او ځايونه
ئي ټول نيولي له دي وروسته
دهرات دنيولو قصد لري. جلا ل
الدين ته ددي خبرپر په اوريدو نو
ر دانتظار وخت پاتي نه شو. فورا
ئي خپلو عسكروته دحركت امر
وكړ دي خپله هم له شپيته زرو

نفرو سره ددښمن په لور روان شو خپل پوځ ئي وهڅاوه چي لړ په بیړه ددښمن مخي ته ځان ورسوی هماهغه و چي هرات ته نږدي دتتاریانو دخبرچیانو او پش قر اولا نو سره مخامخ شو. تتاریانو مخکي لس ورځي هرات محاصره کړي و اووروسته له دې چي هغه ئي تر خپلي ولکي لاندي راوستي و دهغه ځاي اوسیدونکو ته ئي امان او عفو کړي وه وروسته له هراته دغزني دنیولو په قصد راوتلي و جلا ل الدین دلته دهرات په شا اوخواکي له تتاریانو سره ډیر سخت وجنګید تر دي چي دهغوي ئي ډیر زیات نفر ووژل اویوه وزوره ماتي ئي ورته ورکړه وروسته ئي په پټه سره څو نفره نماینده ګان دهرات دښار داخل ته واستول تر څو دهرات خلک دتتاریانو له ماتي څخه خبر کړي خلک ددي خبر په اوریدوزیات خوشحاله شول او پخپلو مینځوکي به یي سره ویل لکه چي الله تعالی بیا خوارزم له قبره راژوندي کړي چي ددو ي خاوره دتتاریانو له شتوالي څخه پاکه کړي. وروسته ئي دښار په داخل کي په تتاري باندي حمله وروړه هغه یي په قتل ورساوه خوکله چي دتتاریانو ماتي خوړلي لښکري دماي په حالت کي هرات ته راورسید او خبر شول چي دهغوي واکدار ئي په قتل رسولي نو په انتقام ئي لاس پوري کړ. کوچني، لوي، ځوان، سپین ږیري ښځه اونر لنډه داچي په هر چاچي ئي لاس برشو هغه یي تر تیغ تیر کړل ښار ئي په کنډواله بدل کړ ټولي شتمني ي دوړلو توان ئي درلود له ځانه سره واخیستي او هغه چي نشواي ئي وړلا

ی اورئي ورته واچاوه. جلا لا الدین چي داخبر واورید سخت پریشانه شو هرات ته پسي ورغی له هغه ځایه ئي پسي واخیستل اوترتا لقان پوري چي دچنګیز دقواو مرکزته او وروسته له سمر قند څخه دقوماندي ځاي و له دی ځایه به ئي ټول عملیاتي ګروپونه اونماینده ګان هر ځاي ته لیږل دغه ماتي خوړلي لښکر تعقیب کړ وروسته جلا ل الدین له خپله ځانه سره فکر وکړ اوداني لا زم وګڼل چي په دي کی جنګ په همدومره کامیابیو باید اکتفاوشي نو ر ورسوه ځان درګیره نکړي په همدي نوي پایګا ه کی پخپل خال پریږدي په طمن کي به ئي خپلي قواوي لیږ ارام وکړي او ددوهم ځل برید لپاره به ځانونه اماده کړي نو خپلو لښکروته ئي امروکړ چي بیرته غزني ته ولاړشي او په هغه ښاروکي چي له تتاریانو نیولي و قوي حا میان او واکداران پریښوول. غزني ته دجلا ل الدین دبیرته راتګ ورځ دخلکو دجشن اودخوشحالي ورځ وه خلکو دجلا ل الدین دشجاعت کامیابي او دتتاریانو دشکست په مناسبت یو لوي جشن جوړ کړي وه مګر دامیر ممدود راتګ په داسي حال کي چي سخت زخمي و اومجاهدینو په اوږو راخیستي و دخلکو داوریه شان احساساتو باندي اوبه تویولي اودهغي احساسات ئي مړه کول اوددي ورځي لویه خوشحالي او کامیابي ئي لړ په غم ولړله . امیر ممدود وروسته له شدید مقاومت څخه چي له تتاریانو سره په ډیره میړانه اوبي مثله ثبات بباندي و جنګید دجنګ په اثنا کي ټپي شو جلا ل الدین دهغه دزخمي توب څخه ډیر غمژن شو ځکه هغه ته دامعلومه شوي وه چي امیر ممدود دهغه شی لاس اووزردي. هو څه ئي وکړه چي ماهر طبیبان راوغواړي اودهغه دزخمو علاج وکړي او په دي لارکي

ئي ډیري زیاتي روپي خرڅ کړي اودهغه طبیبانو لپاره چي که دده علاج وکړي لوړي جایزي اعلان کړي. مګر داچي ډیر سخت ټپي شوي و دطبیبانو علاج کومه خاصه نتیجه ورنکړه ورځ په ور ئي حالت خرابید دجلال الدین به همیشه دهغه باز خواست کاوه اولیدنه ئي کوله اوسهار اوماښام ئي دهغه حال او احوال اخیست. کله چي تکلیف ئي ډیر زیات شو اوپه دي ئي باور شو چي نور دهغه په دي فاني دنیا کي دژوند شیبي لنډی شوي نو یو سړی ئی جلا ل الدین ته ولیږل تر څو داخیري دیدن لپاره ده ته راشي. جلال الدین هم سمد ستي راغی پداسی حال کی چي خپل تنکی اوشیر خور زوی ئي په بغل کی نیولي و او ښځه جهان خاتون ئي په غمجن حا لت کي له څنګ سره نا ستہ وه په نیولي اوژړغوني اواز ئي جلال الدین ته وویل ای دکاکا زویه اوسردار. دادي خور اودادي زوي محمود دي دوي دواړه به ته پخپل خاص محبت اوسر پرستي کي ساتي اوددوي په پالنه اوروزنه کی به خاص خیال ساتي په ماپسي دعاوي کوي که څپه شوي ئي عفوه رانه وکړي.
جلال الدین ډیر سخت وژړل او په داژړاکي دخورغږهم اوچت شو ممدود په یو کرت خپل تنکی زوي ته اوبیا خوا خوږي ملګري جهان خاتون ته ستر ګي رغړولی. وروسته ئي جلال الدین ته وویل. دکاکا زویه تاسی مه ژاړي له تتار یانو سره جهاد وکړي او دپال کتونکو په خبرو باور مه کوی. داخبری پای ته نه وی رسولي چي ژبه ئی بنده بنده کیده په داسی حال کي چی دشهادت کلمه ئي په خوله جاري وه خپله روح ئي بادار ته نذرانه اوتسلیم کړه
نور بیا .....

# عبدالرحیم هوتک

دهیواد ستر مشر میرویس نیکه همت وکړ اود اتلسمي میلادي پیړۍ په لومړۍ لسیزه (۱۷۰۷ ع) کښې یې دافغانستان دسهیل لویدیځې سیمې یا په بله اصطلاح دلوی کندهار سیمه دصفوي اشغالګرو له واکه_ خپلو اکه کړه اوددوی خو نخور . ظالموو حشي حکمران ګر ګین یې چې نسلا ارمنی اودروسانو سوغات وو په پوره میړانه او افغاني همت یې له منځه یوړ. ده په کندهار کښې ملي ریاست جوړ کړاو دافغانانو دملي اوداولس په خوښه یې حکومت جوړکړ. نیمه پیړۍ لا نه وه تیره سوې چې داملي دولت دمیرویس نیکه داولادې تر بګنیو اوکورنیو شخړو وکاوا که او کمو اکه کړ. یوبل یې سره ووړل اوله دې موقع نه په استفاده یوه بل یر غلګر نادر افشار ګته تر لاسه کړه او په لوی کندهار یې وسله وال برید وکړ. په څو میاشتو کې یې دکندهار زوړ ښار کلابند کړ دهوتکي کورنۍ وروستنی واکمن شاه حسین هوتك پوره یوکال دنادري لښکر سره دغړې ووهلې . خو څرنګه چې ښار په اقتصادي کلابندۍ کې وو دکال په تیریدو سره یې ټول داړتیا ور شیان ختم شول اونادري لښکرې بریالی شوې چې دښار کلا بندي ما ته کړي اودکندهار پلا زمیني مقرد "نارنج مانۍ" تر خپلې ولکې لاندې راولي او یو ځل بیا زموږ دازادۍ روڼ لمر تر خپلې وحشي توري وریځې او تور لوګې شاته پټ کړي. خو نادري یر غلګر په دې وتو انیدل او زموږ دازادۍ بل مشال یې مړ کړ. دښار دنیولو وروسته یې سمد لاسه شاه حسین هوتك اودده یو شمیر ملګري بندیان دایران مازندادران ته ولیږل. دبند یانو په دې ډله کې یوکو چنی لس کلن ما شوم هم وو چې عبد الرحیم نومیدی ددوی کورنۍ پوره لس کا له په په مازندران کښې تیر کړل. او بیا په افغا نستان کښې داحمد شاه ابدالي ددواکمنۍ په دوره کښې په (۱۷۷۴ ع) کښې بیرته خپل هیواد ته راستانه شول اوپه خپله پلرنۍ مینه یې واړول.

ددې ډلې لس کلن ماشوم اوس شل کلن شوی وو بیرته خپل ټاټو بې افغانستان ته راستون نه شو. دعلم په زده کړه پسې یې دبخارالاره ونیوله اوله خپل خواږه هیوادنه دتل لپاره پر دیس شو. هلته یې دظاهري اوپا طني تزکیې لپاره دیوه نامتو پیر لمنه ونیوله مرید یې شو او بیا دهغه تر مړینې وروسته یې پر ځای کښېناست اوپه خپله پیر شو پوره پنځوس کاله یې هلته تیر کړل اوبیا هم هلته وفات اوخاوروته وسپارل شو.

دده دعلم تقوی اوتصوف تر څنګ شاعري هم کوله اودعبدالرحیم هوتك بخارایي په نامه مشهور شو. دده شاعري خوږه اوله سوزه ډکه وه. شعر ته یې دوطن یادسوز اوپر دیسي ورکړې وه اودخواږه وطن دبیا لیدلو په ارمان کښې یې سوي ترانې ږغولې دده شعر ته دده دپردیسۍ ستونځو زوړ درد او اغیزې وربخښلې وې اودفراق لمبو یې شعر پوخ کړی وو اوخوږ کړی وو. عبدالرحیم هوتك ډیر ماشو دوطن له نرمې او وریښمینې غیږې څخه جلا سوی وو. خو دښایسته کندهار ښکلې ځایونو یې د ذهن په تصویر کښې دتل لپاره ځای نیولی وو او هروخت به یې دخپل وطن په یاد دسوز نارې او غزلې ږغولې او خپل پردیس زړه سوده بې په ماتوله.

غزل

ښایسته کندهار ډیر ډیر یاومه
نه هیریږي که هر څو یې هیرومه
خصوصا دارغنداو باغ او ولو ته
زړه مي غورځي بې طاقته شم نه درمه
سرپوزه اوکاغانك چې پر زړه داسي
اورمي واخلي پر ځای پیك وښورومه
کوکران او ګوندیګان دخدای په حکم
څه فیضونه باندي اوري کې شمیرمه
سرپوزه چې لو واله پکښې بهیږي
داوبو ږغ یې مدام پرزړه لرمه
یودم کښینه په ایوان دچلزینو کي
تماشاوکړه چې زړه دې سي بې غمه
څه فیضونه چې له دې ځایه زوه مینم
چې له غیبه باندي تل اوري هر دمه

چې غریب په بخاراکې یم له غمه
ماهم یادکړه چې دي خدای کې برخه لویهنیاز من
دروله په زړه نادې وهینه
چې دي ورسي ناره په درست عالمه
دغه خوار "رحیم" چې دا اشعار بیان کړه
غرض دا چې قدردان وژړومه
په دې غزل کښې دکندهار ټوله ښکلې او ښایسته ځایونه وستایل او په یویل ځای کښې بیا دکندهار زوړ ښار، زاړه یاران او انډیوالان وریادیږي اوپه یادکې یې ویلیږي. لکه څنګه چې دی په یو شپږ بیتیزه کښې وایې:
پر زاړه ښار چې مې راوړې قدمونه
دفراق نارې مې وکړې په کوکار
هغه ښه یاران چې ما لیدلي وونه
پرې پوهیږم یو به نوي په قرار

بخارا اوسمر قند مې زړه زخمي کړ
غوارم پا څم په زیارت دکندهار
هو عبدالرحیم هوتك له کندهاره بیل وو، له خپله وطنه بیل وو اودخپلو خوږو ملګرو ام یارانو بیل وو خو دومره خبریده چې کندهار یو ځل بیا خپلواك شوی‌دی د افشار یانو دوره پای ته ورسیدلې ده اودکندهار په پر لویه سیمه بیا دازادی لمر وړانګی خوریکړی او دکندهارپلازمینی په احمدشاهي اشراف بلادکې ترپخوا لاښه ودان شویدي. او دپردیو دتیریو ټولې ورانې بیا ابادی شواو ودانی شویدی.خوبیا هم دی له دې کبله چې غریب اوپردیس وو په خپل وطن اوښکلي کندهار پسي کړیده اوځوریده اوغوښتل یې چې په خپلو له سوزه ډکه اشعارو قدردان وژړوي.

(د عبدالواسیع هڅیال رالیږنه)

## پیسی سیځل

وایي چه پخوا یوسړی وو، چه ټو لو خلګو به لیونی باله، داځکه چې ده به مزدوري کوله اوځه به یې ګټل له هغې کتې څخه به چه ضروریات پوره کړه نو پاته پیسو څخه به یې هر سهار د پنځوو روپو نوټ سیځه.
دده دالیونتوب مشهور سو څو چې داقتصادیو متخصص وغوښته چې دالیونی وګوری چې دی څنګه هر سهار دپنځو روپو نوټ سیځی.
دا متخصص یو سهار وختی ددې لېو نی کورته ورغی. لیونی هم په ډیر ورین تندی دده هرکلی وکړ اوچای یې ورته راغوښتلې خو متخصص وویل چې چای نه څښم فقط ماته یو قطی سګریټ راوغواړه.
لیونی هم سګریټ راوغوښت، په ښه اهلیت یې مجلس ورسره وکړ، کوم وخت چه دده دمز دوری وخت راغی نو متخصص ته یې وویل چې:

زما دمزدوری وخت دی مهر بانی وکړه درځه چې ځو" متخصص ورته وویل " ما اوریدلی وه چې ته داسی لیونتوب لرې چې هر سهار دپنځو روپو نوټ سیځې، نن خودی هیڅ ونه سیځل"
هغه سړی ورته ومسل او وې ویل: " لیونتوب خو نن تاوکړ نو خکه ما پرینبود." متخصص په ډیر تعجب ورته وویل:
" زه اولیونتوب؟ داځه وایې !؟"
هغه ورته وویل : " وروه ما به هر سهار دپنځو روپو نوټ سیځه نن مې دهغو پنځو روپو تاته سګریټ رانیو، چې تاسي وسیځه.
مګر خلګ زماو سیځلو ته لیونتوب وایې اوستا سی سیځلوته " فیشن"!!! (دپیاوړي رالیږنه)

# د وروستي مورچل لنډون

{ص-م-صالح}

که ګرانو لوستونکو دمحمد نسیم (حجازي) تاریخي داستانونه لوستلي وي زما په دې لنډه لیکنه به یې هیڅکله هم تنده ماته نه شي. دهغه هراثر ډیرې لیکنې غواړي او مرغلر ددغه لیکوال داستانونه دډیر ارزښت نه ډک ځکه دي چې دحقیقت په زیور پټ او دغه خبرې یې دسوسوه کاله پخوا پېښې دي. وروستی مورچل هم دهغه دبا ارزښتو داستانونو څخه یو سنګ پارس اثر دی. هم دمعنی له پلوه هم دمنځ پانګې له پلوه او هم دهنریت له پلوه. کله چې د وروستي مورچل دتاړاکونو، حماسو او سربښندنو ننداره ددې کتاب دپاڼو دتور په هنداروکښې وکړو هغه غازیان او اتلان مو سترګوته درېږي چې دبغداد، مدینې او نور ښکلن هیوادونو په دښتو کښې شپې او ورځې لوږه تیرولي. وږي اوتږي په پراخو بیابانوکښې یې تودوخه اویخنې ګاله اوهغه غازیان مو دذهن پر پاڼې انځور وي چې له ډیره تندې نه به یې خپل داس ګیډه په خنجر سوري کوله او وینه به یې رودله. هغې پیغلې هم لوستونکي ته ور په زړه کوي چې لکه نارینه پر اس سپرې او یوازې به یې دلسو تنو تاتاریانو سره لاس او پنجې نرمولې. هغې پاک لمنې او دعزت سمبولې چې داسلام ددین دپیاوړتیا لپاره به یې نوری میرمنی سره راټولولې او ددین تبلیغ به یې کاوه. هغوی څه غوښتل، دچالپاره یې غوښتل ؟!

هغوی خپل ددین پراختیا غوښته. داسلام لپاره دقران په رڼا کښې اوددین دپیاوړتیا او ټینګښت لپاره به یې هلې ځلې کولي. لیکوال خپل په هنر مندو ګوتو پیښې دومره جذابیت په تار په مهارت سره پیيي او رنګ ورکوي چې لوستونکي دپیښو ژورو ته ننوزي. په دې کښې دژباړن ونډه هم ډیره ده. ځکه ژباړه هم ځان ته یو ډول مهارت او برلاسي غواړي. ځکه ځینې کسان چې ژباړه کوي هره جمله ټکې په ټکي ژباړي او کتاروي یې. بي له دې نه چې دهغې ژبې دجملو دجوړښت قانون ته وګوري چې هغې ژبې ته ژباړه کوي. په هره ژبه کښې دجملو جوړښت او پیپل توپیر لري په ځینو ژبو کښې صفت تر نامه وړاندې راځي ځینو کښې وروسته او همداسې نور توکي یې هم یوله بل نه جلا دي خو زبیر شفیقي (دروستي مورچل ژباړن) په ژباړه کښې پوره برلاسي دي کله چې ژباړه یې لولو ګومان کوو داد هغه تخلیقي اثر دي نه ژباړل سوی اثر. زبیر شفیقي دا اثر خپل مور اوپلار ته ډالې کړې دی او لکه څرنګه چې ژباړن خپل په یادښت کښې راوړي دا داستان د (وروستی کمر) په نامه دسهار په ورځپاڼه کښې هم په پرله پسې تو ګه خپور شوی. شفیقي یو ځای داسې یادونه کړې

(ډیر نوري ادبي توکي شته باید وژباړل سي ځو دنسیم حجازي داثارو له طلسم نه ځان نشم ایستلای) او اوس به ددې کتاب ستري پیښې دلوستونکي مخې ته غوړوو. که څه هم کتاب ترپایه ستري پیښې دي او ټول باید راشي مجلې حوصلې نه په پام کښې نیولوسره تر هغه ځایه چې عقل راسره ملګرتیا کړې ددې کتاب دارو پیښو نه مې اخیستنه کړې او دلنډډول په عرض مې په لنډول راوړي داستان دهغې سپیځلي ورځې نه پیل کیږي چې دفطرت هنر مند انځورګر دنړۍ په نقشه کښې نوی رنګ خپراوه او هغه دامنی په ګلاب، دعبدالله دبچي او عبدالمطلب دلمسي (حضرت محمد ص) زیږیدنې ورځ وه. دکفر تیاری دماسپښین دسیورو په شاني ورتولیدې او دقیصر او کسری داستبداد مانې ویجاړې شوې. داسلام دبرې جنډې دالبرز دغرونو په څوکو اوبل لوري ته دافریقا په شګلنو دښتو کښې رسیدې. خو شپږ سوه کاله وروسته بل اوښتون راغی یو تیاره انقلاب (اوښتون) دجبر او ظلم هغه هوس چې دروم

او ایران دمانیو په کنډوالو کښې ویده وو دګویی ددښتی دیوه شپانه په وجود کښې راویښ شو. هغه شپون (تمو چن) وو چې د (چنګیز خان) په نوم مشهورو. دبخت بیړه یی دوینو په سمندر کښې لامبو وهله دده برخه دتیارو دتوپا نونو لاز ښوونه وه. دده په مشری دمنګو لیا وحشئ قبیلی دیوی سیلی په څیر پورته شوی دتهذیب هره ډیوه یی مړه او دنړی په څلورو خواو خپاره شول. شپږ سوه کاله دمخه چې کوم نسیم دعربوله دښتېنه راچلیدلی وو هغه دانسانیت پر بڼ درحمت غمی اورولی وو خوشیږ سوه کاله وروسته چې دګوبی له دښتی نه کومه تالنده رانښکاره شوه په هغې کښې دنیمونو پرخای د چا ودلیو او رغور خونکو غرونو تودوښه او اورونه وو. دشپنو دقبیلو (چنګیز) سره داسونو کمی نه وو هغوی هرچیری اړول. چې شین ټکی به پاتی نه شو بیا به یی بل ځای کډه کوله هغه ډیر ستر سرداران تابع کړل او ډیری سیمی یي ونیولی په شمال او ختیځ کی ګا وندی هیوادونه یی حیران کړی وو. په هر کلی چې به پیښ شول وګړی به یی وژل دچنګیز دهر پوځ جنرال به دفتحی دیادګار په خاطر دانسانانو له سرونونه څلی جوړاوه. هر څلی به چې لوی وو دهغه جوړونکو ته به چنګیز شا باسي ورکاوه.

***

مدینی ته نږدی دجومات په ا نګړ کښی احمد بن حسن یو (۲۲)

کلن ځوان ته چې طاهر بن یوسف نومیدی وویل: په بغداد کښې به قاضی فخرالدین درته غوره لاز ښود شي. دخدای (ج) رضا دخلیفه تر رضا وړاندی وګڼه. ما درته پنځه غمی ایښی دی. ته به دبغداد دشتمنو په حساب کښې راشی ما یو غمی زرګر ته ورښکاره کړ. هغه وویل ددی بیه له لس زره دینارنه کمه نه ده. طاهر له احمد بن حسن نه جلا او دبغداد په لوری روانیږی طاهر بن یوسف هغه وخت زیږیدلی وو چې دصلاح الدین ایوبی توری داسلامی نړی په لوری داروپا دعیسو یا نو ځواکونو مخه نیولی وه. په کال (۱۹۱هـ ق) نشاکښی دعیسو یانو سیلاب پر اسلام واوښت دبیت امقدس المتدس او دشام ډیر مهم ښارونه یی تر پښو لاندی کړل او عیسوی حکومت یی پکښې جوړ کړ. نږدی پنځوس کاله وروسته داسلام نړی ددفاع جذبه د عمادالدین زنګی (رح) دشخصیت په بڼه راڅرګنده شوه. داسلام دغازیانو پخوانی ویره راویښه شوه. دبغداد عباسی خلیفه لومړی دهغه حوصله لوړه کړه دهغه دمیړانی داستانونه یی چې واوریدل داسلامی نړی په زرګونو سر ښندویان یی تر بیرغ لاندی راټول شول دګډ وډیو له املم یی خپل کار تر سره نشو کړای. خو په (۵۸۴هـ ق) په مصر کښنی دصلاح الدین ایوبي اقتدار دعیسویانو ډیوی ته دباد یوه څپه شوه. عیسویانو ته دایو توره تر سلجوقیانو

خطرناکه ښکاره سوه. دهلال دجنډی داوچتولو جذبی احمد بن حسن هم له مدینی نه فلسطین نه ورساوه. صلاح الدین هغه د دو ولسو ټولیو مشر وټاکه او داحمد بن حسن بل ملګری یوسف یی هم دپنځو ټولیو مشر وټاکه. که څه هم یوسف ته دهغه دمیرمنی له خوا لیك په لاس ورغی چې حال یی خراب ښیی. خو یوسف پر یرشلیم (القدس) دهلال دبیرغ رپولود هیلي په خاطر کورته دتللو نه انکارکوی. اته ورځی وروسته چې مسلمانان پر القدس حمله وکړه لومړی کس چې پر دیوال کمند واچاوه یوسف وو سلطان وویل. که یوسف د دیوال سرته وخوت زه خپله توره ورته ډالی کوم. یوسف ددروازی پر سر دلوړ برج صلیب نشانی یی وغورځاوه دسلطان پر سترګو دخوښی اوښکی راغلی او وي ویل ته زما زوی یی. او خپل اسایی هم یوسف ته ډالی کړه. یوسف دډیری میړانی وروسته دشهادت جام نوش کړ. اوخپلی میرمنی سره یو ځای سو خکه هغه ته ښکاره وه چې میرمنه یی (زاهده) ژوندی نه ده. بیت المقدس دمسلمانانو لښکر فتحه کړ.

***

احمد بن حسن بغداد ته روان سو، صلاح الدین په یوې کځوړی کښې پنځه زره طلایی سکی اوپه وریښمین دسمال کښې یی څه غمی یی دشهید یوسف دزوی دروزنی لپاره

توره تر احمد بن حسن ته ورکړل.
سلطان خپل اس او توره هم
ورکړه چې اس وپلوري او روپې
يې ديوسف ميرمنې ته ورکړي.
توره يې دهغه ماشوم زوی ته
ورکړه حسن اس دچين پر سفير
په لس زره درهمه جواهرو وپلوره
او سباته ديوسف بن ظهير دزوی
(طاهر) سره مدينې ته روان سو.
دځينو نښتو او جګړو په وجه
يې طاهر چې (۲۲) کلن زلمی
سوی وو له مدينې نه ئې بغدادته
واستوی. خلګو ويل چې
دعباسي واکمنې تر ده غوره
صدراعظم نشي موندلای دطاهر
سره يو باتقوای او ديندار
مسلمان (زيد) هم د سفر ملا و
تړله او دبغداد په لوري روان
شول.

***

طاهر دقاضي فخرالدين
کورکښې ميشته شو څو ورځې
وروسته خپل دغميو څخه يې يوه
دانه په (۶۴) زره او پنځه سوه
دينار وپلوري دری مياشتې
وروسته ددجلې دسيند پر غاړې
يوه ښکلې ماڼۍ رانيسي او
دبغداد دا ميرانو تر منځ ښه
شهرت پيداکوي. طاهر په (۱۶)
کلنۍ کې په نيزه وهلو او توره
چلولو کښې دډير کمال خاوند
وو. يوه ورځ يې کوتوال ديدن ته
راغی او طاهر يې دبغداد
دصدراعظم (افتخارالدين) ته
دملاقات لپاره يو ور. له
ملاقات نه وروسته طاهر يو
غمی افتخارالدين ته ډالۍ کړ او
افتخار الدين هم خپل خدمتګا ر
ته وويل چې طاهر طبيلې ته له
ځانه سره يوسه او هر اس يې چې
خوښ سو هغه ورکړه. او طاهريي
سپاشپې ته هم ميلمستياته را
وبلی. دخدای په اماني په وخت
کښې طاهر دافتخارالدين زوی
قاسم سره هم اشنا کيږي. او
طاهر ته ټينګيږي چې دصلاح
الدين ايوبي توره راکړه. طاهر
ورسره داخبره په دې شرط ومنله
چې دواړه به دتوری وهلو بازی
کوی. او وي ويل که مات سوم
توره به درکړم. دطاهر او
صدراعظم تر منځ دملګرتيا مزی
وغځيدلی. طاهر د عبدالعزيز ته
هم د دوستی لاس ورکوی او يوه
ورځ دلښکر دمشر. کورته هم لاړ
او ډيری خبری يې سره وکړې.

***

دتوری وهلو په مقابله کښې
طاهر بريالی سو او دقاسم استاد
هم چې فرانسوی وو ماتی وخوړ
دلوبې په نندارچيانو کښې
دقاسم خور سکينه اودهغې دتره
لور او صفيه هم راغلې وه دوی
دطاهر سره هغه وخت مخامخې
شوی چې طاهر په طبيله کښې
اس خوښاوه دسکينې دشونډو
لاندې بې اختياره دعا ګانې
زمزمه کيدلی چې دطاهر لپاره
وی. طاهر دبل اس خاوند هم سو.

***

يوه ورځ يوه ښکلې په حجاب
کښې پټه نجلۍ طاهر ته په اس
باندې راغله او وي ويل چې
قاسم په زړه کښې دغچ اخيستلو
اور مستی کوی ځان وساته.
طاهر حيران چې سو داڅوك ده
خوکله چې يې دصدراعظم کره
ددو پيغلو سره دمخامخ کيدو
صحنه ورپه ياده سوه. ګومان يې
لړ څه په يقين بدل شو چې دابه
هرومرو د هغوی څخه يوه وی.
صفيې دقاسم خبری دکړکۍ له
شانه اوريدلی وی چې سفينې
سکينې ته داس دڅغلولو په پلمه
زاری وکړي او دواړو ددجلې
دسيند پر غاړه اسونه ځغلول او
صفيه په دې پلمه چې اس يې
ياغی سو دسکينې نه جلاسوه او
دطاهر هستوګنځی ته ورغله او
ټولې خبری يې ورته وکړې.
طاهر هغه دسفيې په خبروکښې
څه شکمن وو خو دصفيې
اوښکې د طاهر او دطاهر
دملګری عبدالمالك له زړه نه
دشك ګردونه ومينځل.

***

قاسم دپو ځيانو سره دطاهر پر
خيمو حمله وکړه، کيږدی يې
ونړولي اورونه يې ورواچاوه خو
هيڅ څوك يې تر سترګو نه شول
ټول هيښ پاتې سول دطاهر
ملګري ونو (درختو) ته ختلی وه
چې په ډير ځراکت سره يې
دقاسم او دهغه دکسانو توري او
غشي يې واخيستي او خالي لاس
يې بيرته ستون کړل. طاهر دقاسم
توره ديو ليك سره مل دهغه پلار
(صدراعظم) ته واستوله چې
سخت صدراعظم دخواشينې
سبب سو پر قاسم يې ډير منت
وکړ. دهغه ګومان وو چې بله ورځ
به طاهر زما پر ځای دبغداد
صدراعظم وی. او دچاری واګې
به يې په لاسو کښې نيولی وی او
دقاسم دا کاريي خپل د دوستی
په لارکښې يو خنډ وباله.

***

طاهر ته عمادالملك او وزیراعظم یولیك ورکړ چی چنګیز ته یی ورسوی طاهر د چنګیز دربارته خان رسوی دچنګیز ترجمان سره په هماغه لومړی دقیقه کښی اشنا سو. ځکه چی نوموړی مسلمان وو او له همدی کبله خینی حرکات یی طاهر ته وښودل چی باید ورځخه ډډه وکړی ځو دچنګیز دقهر لمبی اوروینی نکړی چنګیز حاضرېږی او طاهر لیك ورکوی چی متن یی داوو (دتاتارستانو پاچا چنګیز خان باید وپوهیږی چی پر موږ دخدای [ج] او دهغه درسول [ص] له لوری داسلامی نړی دټولو مسلمانانو دعزت اوازادی دفاع فرض شوی دی د خوارزم له پاچا سره زموږ ځه اختلافات سته خو پر اسلامی نړی له بهر نه دکومی حملی اوګواښ په خاطر موږ نه یوازی دخوارزم شاه په ملاتړ مجبوریو بلکی دهغه تر بیراغ لاندی به دیوه معمولی سپاهی په څیر جګړه دځان لپاره نیکمرغی بولو، که داربښتیا ده چی دتاتار پاچا دخوارزم پر سر حدونو پوځونه راټولوی موږ ګواښ کوو چی دخوارزم پر خلاف دجګړی اعلان به دټولی اسلامی نړی پره خلاف دجګړی اعلان وبلل سی ددی لیك په ځواب کښی موږ دمغلو (تاتارو) له پاچانه دا اوریدل غواړو چی دوی به په خوارزم حمله نه کوی دمسلمانانو دخلیفه ابوالعباس احمد ناصرالدین لخوا)

چنګیز لیك دترجمان له خولې نه واورېد خوپه ډیر عادی حالت کښی وو. تندی یی تریونه سو. طاهر ته یی وویل موږ له اسلامی نړی سره ددښمنی اراده نلرو خوارزم شاه له موږ سره ډیر زیاتی. کړی بیاهم موږ پر هغه دتیری حملی اراده نلرو ترجمان طاهر ته څه نوری لارښوونی هم وکړی دطاهر سره دری تنه ملګری وه یو په هغوی کښی کمال وو بیرته روان شول طاهر دجمعی لمانځه نه چی خوقند ته نږدی سل میله جنوب ختیځ نوری نه وو اداکړ. حاکم وروسته دلمانځه نه تود روغبړ وکړ مازدیګر دوالی دکور وخوا ته روان وه چی کوتوال کهر کوټه کړ یو دکمال یی وزکړ چی هغه کښی دری غمی وه کوتوال وویل دامی دکمال نه واخیست چی دغه زرګروته یی تیکاره کول کهر کمال سره ولید اویه زوره یی په خبرو راوست کمال اقرار وکړ او وي ویل چی دا غمی دچنګیز دکانو یو تن راکړل دکمال اونورو دوو ملګرو سرونه چنګیز خریلی وه چی طاهر ته داریانی خبره وه. کله چی دکمال له سرنه یی خولی په زوره لیری کړه دهغه په سر یی په سره رنګ لیکل سوی ځو غیبی کرښی ولیدلی ( په اسلامی نړی کښی ناکراری خوره سوی ده خوارزم شاه ته دتیاری موقع مه ورکوه دمسلمانانو دخلیفه او دبغداد دخلکو دعا ګانی له تاسو دی. استازی به ددی پیغام دځنډید و سبب درته واویی.

دخلیفه له لوری چی طاهر ته څه وایی هغه نه غلط مطلب وانخلی هغه یوازی دلاری دستونزو په خاطر دراستول کیږی دعباسی دولت نعمت خوار اوستاسو خاص خادم وحیدالدین دبهرنیو چارو وزیر)

دطاهر په درو ملګرو کښی ابو اسحق دکمال او جمیل نه مشروو چی دغه خیانت کښی یی ستر لاس درلود دقوقند په بندی خانه کښی طاهر او دری ملګی یی دوی میاشتی دجاسوسی په تور بندیر کړل خانه یی دلیك لیکلو حق نه درلود. یوه ورځ یی طاهر دیدروای تیمور ملك ماضی ته یووړ. ظاهر والی ته هر ځومره چی ټینګ سو چی ځوشی یی کړی ځو بغداد ته لاړ سی او دمغلو پرضد دخپلو خلکو ننګه وکړی خو تیمور ملك ونه منله په دی وخت کښی دپاچا له لوری یو لیك والی ته رسیږی ملك غوښتل چی لیك طاهر ته ورکړی خو طاهر پوه سو چی څه کیسه ده وي ویل زه ځومره وخت په ژوندی یم؟ ملك وویل تر سبا پوری

***

خلک راټول سوی وه ځو دطاهر اعدامول وګوری لایی دطاهر پښونه تخته لیری کړی نه وه چی غږونه وسول. تیمور ملك دطاهر له غاړی نه ددار کړی لیری کړه لاسونه یی ورخوسی کړل او پر اس یی سپور کړ ورسره یې پوځای ودانګل. مغلو یرغل کړی وو خلګ په وحشت کی وه طاهر او تیمورملك په ګډون

دسپاهیانو سره دسیند غاړې ته چې ها خواته مغل میشته وه ځان ورساوه لـه سیندنه واوښتل او څوتنه یې ووژل تیمور ملك هم طاهر سره یو ځای سو دښلو اوغرونونه واوښتل اوه تنه سپاهیان وریسې پلې روان وه طاهر پلې سو تیمور ملك یې په زوره روان کړ طاهر ټول سپاهیان ووژل او بې له دې نه چې لاړ ورته معلومه وي روان سو هواسره وه یوکلي ته ورسید چې ماشومان اولویانو بې کفنه مړه پراته وه چې دتاتاریانو دوحشت ځرګندونه یې کوله. دطاهر اس پر ځمکه ولوید اومړسو پر طاهر هم ضعف اولوږې غلبه راوسته خو خپل درته یې دعاوکړه یو غږ یې واورید دغوندۍ پر سر یې یوزین سوی اس ولید مسکی سو . . . داس غاړه یې ښکل کړه پر اس سپور سو هلته یې یوبل مړی هم ولید داس تر ځنګ کځوړه ځړیده چې غوښه او پنیر پکښې وه ځان یې ښه موړ کړ.

***

یوبل وران کلي ته ورسید تیمم نه وروسته یې اذان وکړ لمونځ یې هم وکړ هیڅ څوك نه وو موده وروسته یې تته رڼا ترسترګو سوه یو اته کلن ماشوم چې په لاس کښې یې مشال وو دروازې کې ودرید ورسره یوزلمی هم وو دطاهرنه دپوښتنو وروسته بل کورته ځي او یوه لویه ډبره لیرې کوي او دمځکې لاندې سمځې ته ننوزي. هغه زلمی نجلی وه چې طاهر وپیژنده. هغه نجلی چې ثریا نومیده خپله کیسه طاهر ته وکړله هغې وویل زما پلار ددې ښار حاکم وو چې تاتاریانو هغه دپوځیانو سره چې ښځې هم پکښې وې ووژل خپل دخادم په لاس مې دبلخ حاکم ته لیك ولیکه او وامې ستوه څو موږ له دې ځایه وباسي ماښام مې دخادم اس غږ واورید. خو خادم نه وو. طاهر وپوهید چې خادم هماغه شهید سوی ځوان وو چې دهغه اس یې هلته وموند. طاهر ثریا سره شرط وتړې چې ضروریې بلخ ته رسوي.

***

ماښام شپې تنه د دوی په کورکښې راځرګندیږي چې تاتاریان وه طاهر او ثریا اوه واړه چې ووژل دهغوي په اسونو سپاره سول او دبلخ په لوری روان سول. دویمه ورځ غرمه مهال دمسلمانانو د ډلګی سره مخامخ سول چې مشر یې ملك وو. شپه یې هلته تیره کړه او تیمورملك یو لیك ولیکه څو پر لاره یې څوك مزاحم نشي. طاهر ثریا او دهغه ورور اسماعیل یې بلخ ته ورساوه دهغه نیکه شیخ عبدالرحمن نومیده چې شتمن سړی وو. هغه هم طاهر ته یولیك ورکړ څو پر لاري یې یې څوك ونه زوروي.

***

طاهر بغداد ته راغی دملګرو سره یې وکتل دصدراعظم سره یې هم لیدنه کتنه وسوه. کله چې د صفیې سره انګړکښې مخامخ سو هغې دګلو یوه ګېډۍ ورکړه طاهر ګلان سیند ته واچول او وي ویل ثریا! زه ستا یم ـ ستا!

***

عبدالعزیز، عبدالمالك، افضل، زید او مبارك دطاهر سره خپل ملاتړ ځرګند کړ. او پریکړه یې وکړه که هرڅوك په موږ کښې خیانت وکړ دڅې له خوا به یې سر پرې سي.

دبهرنیو چارو نوی وزیر مهلب صدراعظم سره ناست وو چې ویل یې طاهر یاغي دی، که اقدام ونکړو اوله بغدادنه یې ونه باسو ښایي ډیرې ګډوډۍ رامنځ ته کړي بیا یې دقاسم نه دطاهر دملګرو په هکله ټې پوښتنه وکړه چې کوم یو یې پیژنې.
قاسم دافضل پر پلو خپل دامید مزې غوټه کړ چې مرسته به وکړي هغه وو چې افضل په خوږ وخبرې تیر باسي څو طاهر ته خیانت وکړي.
دصفیې دلیك استولو رازهم بر بند شو چې خپلې نوکرې ته به یې لیك ورکول هغې به د دروازې پهره دارته رسول.
خو قاسم نوکره وویره وله چې لیك دې ورسوي خوچاته په دې هکله باید څه ونه وایي طاهر دلیك دمتن سره سم دصفیې سره ولید او ډیرې خبرې یې سره وکړلې. طاهر تلو ته چمتو سوی وو چې سپاهیانو وینو او زندان ته کې یې واچا وه . . . په زندان کې یو چا طاهر له خوبه وینښ کړ وي لید یوبل ببر سرې بندي دی دهغه سره یې ملګرتیا ټینګه سوه هغه دبهرنیو چارو پخوانی وزیر سیدوحیدالدین وو. بخارا دوحشي تاتاریانو لاس ته ورغی هلته یې هم ټول خلك ووژل.

دښځو لاسونه بـه یـی تـړل او داسونو پسی به یی راکشولې خو دچنگیـز ددومـره لـوی ښار پـه نیولـو سره دخوشحالی پـر ځای خپـه وو ځکـه دوه زره تنـه سپاهیان یی ووژل سول خـوارزم بـه لـه دی نـه چـی دخپـل دزوی جلال الدین مرستـه تـر لاسه کړی دخزر دبحیری یوی جزیری ته پناه یـووړ او هلتـه دتاتاریـانو لخـوا ووژل سو.

***

طاهر زندان کښی پـه لمانځه ولاړ وو او ډوډی یـی ورتـه راوړلـه وحیدالدیـن چـی ډیـر وږی وو او هیڅ کله یی هم غوښه او پنیر نـه وو خوړلی پـه خوړلـو بوخـت شـو خـو څو دقیقـو وروستـه نـاڅا پـه مړسو طاهر دهغـه مړی پـه هغـه سـوری کـښی واچـاوه چـی دواړه تری یو بـل کوښی نـه تـک راتـګ کاوه طاهر دپښو غړونه واوریدل ځان یی مړ واچاوه دطاهر پـه نـس یی غټه ډبره وتړله او سیند ته یی وا چوی طاهر په ډیر مشـکل ځان ساحل ورسوی. صفیه له خپګان نـه دکوره وتلـی وه اوسـاحل کـی ګرځیده کله چی یی غږ واوریـد ورغله او طاهر یی وپیژانـد. هغـه دقاسم او دزندان دمشر مهلب لـه دسیی نه خبره سوه. طاهر صفیی ته قسم یاد کړ چی زما دعشق پـه اسمان دوه ستوری ځلیږی ثریـا او صفیـه. صفیـه خپلـه ګوتمـی طاهر ته ورکړه چی ثریا ته یی بیـا ورکړی. طـاهر پـه یـوی کـوچنـی بیـړی کـښی روان سـو. دتلـو پـه وخت یې صفیی تـه وویـل چـی خلـګو تـه ووایـه چی طـاهر مـړ سوی.

دقاسم پلار صدراعظـم دصفیـی لـه خولـی لـه دی دسیسی نـه خبر سو. قاسم یی مصرتـه واستاوه او وي ویـل څو چی زه بغداد کـښی صدواعظم یم تـه بـاید دلتـه ونـه اوسی.

***

دمـروی مشـر جـلال الدیـن سـره (تولای) دچنګیـز زوی دسـولی تـر سرلیك لاندی خبری اتری وکړی. ټول خوشـحاله سـول چـی مغـل دمسـلمانانو سره سولـه کوی خـو بلـه ورځ مغـل دمسـلمانانو پـه جامه کښی دمروی ددرـوازی نـه ښارتـه ننوتـل والـی امـر وکـړ چـی دروازی وتړی ننوتلی تاتاریان یی ووژل پـه پای کـښی مغـل دمروی ښارونیو او دانسانانو دکوپړیو نـه یی دوبـاړ دنـګ برجونـه جوړ کړل پـه یو چابـه یـی پـه زوره اذان کـاوه خلـګ بـه چـی دلمـانځه لپـاره لـه کوره وتل مغلو بـه ټول وژل. داور یـو داش یـی جـوړ کـړی وو چـی خلـګ بـه یـی ژونـدی هلتـه اچـول دوی بـه ورتـه اتـڼ کـاوه ټول ښار بوی ونیو او دژوندی انسان ټکـی هم پاپی نشو طاهر چی بغداد نـه وتښتیـد دمـروی لـوری تـه روان سو دغازیانو ډلـه هر ځای ورسره یـو ځای کیدلـه ان چـی دری زره کسیـز پـوځ تـری جوړسو. دجلا ل الدیـن او دمـروی دښار پـه هکلـه یـی معلومـات ترلاسـه کـړل او دجنوب ختیځ پـه لـوری روان سو. یوې شپلی کښی یی دمسلمانانو او مغلو جـګړه ولیـده. عبدالعزیز چی دغه صحنی ته وکتل او ټولـو بـاندی یـی غـږ وکـړ ټول لکـه سیلاب ورکښته سول. مغـل یی تیښتـی تـه اړکـړل. جـلا ل الدیـن چـی خپـل بریـالیتوب ولیـد خوشـحاله سـو دطـاهر سـره یـی ولیـد او داشـنایی نـه یـی هـم بـی اندازې خوښ سو طاهر چـی دبلـخ اوهـرات دتبـاهی داسـتانونه واوریـد خواشـینی سـو دشـیخ عبدالرحمـن پوښتنـه یـی وکړلـه چاچی هغـه پیژنـدی ویـل یی چی خپل دکډی سره غزنی ته تللی.

***

دتقدیر په غوښتنه طاهر غزنی تـه لاړ. هلتـه دپوښتنـو وروسـتـه ورتـه څرګندسـو چـی عبدالرحمـن دهندوستان پـه لـوری روان شـوی او دهغـه ځای نـه مدینـی تـه تللـی داوخت پر افغانسـتان هـم دمغلـو نـاولی منګولـی غځیدلـی وی. طـاهر دملـګرو سـره یـو ځای دغزنی په جوماتو نو کښی خلګو ته نصیحتونه کول او جهاد ته یی رابلل. جلال الدین بیا دمغلو سره پـه جـګړه بوخـت سـو دری ورځی سختـه جګړه دوام درلـود وروسـتـه یـی مغـل دکـابل ترسـیند پـوری وزغلـول. داخبر لکـه بریښنـا هـر چیری خپـور سـو. دهندوکـش لـه غرونـو دمرغـاب تـر غـاړی پـوری ټول قبایل راپورته سول او دمغلـو ټول پیره داران یی ووژل.

جګړی روانـی وی چنګیـز د سـند لـه دریـاب نـه دخزرتـر بحیرې پوری پر ټوله اسلامی نړۍ واکمن سـو او دځان غلیـم یـی یـوازی جلال الدین بالـه.

***

طاهر دعبدالرحمن کورته ورسید
دثریا سره انګر کېنې مخامخ
سو. عبدالرحمن ډېر ژر طاهر ته
دواده خبره یاده کړه او وې ویل:
دثریا مدینه خوښه ده هلته ماهم
یووړ کور رانیسو دوه نوکران مې
بغداد او دمشق ته هم استولي
چې کورونه رانیسي ته او ثریا به
دواړه مدینې کېنې اوسیږئ.
طاهر ټینګار نه وروسته خدای
پامانی وکړ خکه په شاهي
میلمستون کېنې خلک ورته
منتظره وه. طاهر دثریا سره واده
وکړ او دصفیې ګوتمې یې ورکړه
ثریا هم خپله ګوتمې طاهر ته
ورکړه څو صفیې ته یې ورکړي.
تیمور ملك ډیلي ته ورسید او
دسوغات په توګه یې طاهر ته
وویل تر څو سلطان جلا ل الدین
په هندوستان کېنې وي ته به د
ډیلي سفیریې. او دطاهر میرمنې
ته یې خپل حمایل چې پلار یې
دقران توری پرې لیکلی وه ډالۍ
کړ.

***

طاهر اوثریا دډیلي په مسلمانانو
کېنې نوی ساه پو کړه ثریا به
ښځو ته وینا کوله. طاهر به
جوماتونو کېنې نارینو ته.
یوه شپه صدراعظم دخلیفه
ددربارنه ووت دڅو تنو له خوا
پرې حمله وشوه. یو نوکریې ووژل
سو او خپله هم سخت ژوبل سو.
ماخوستن دلمانځه نه وروسته
صدراعظم هم په ابدي خوب
ویده سو.
دبغداد هره خواکېنې دطاهر
دمړینې اوازه انګازې کولې یوه
ورځ طاهر دلښکر سره دڅو
سپاهیانو سره مخامخ سو.
دسپاهیانو مشر طاهر ته وویل
ستا غږ یو داسې مړي راپه یاد
کړ چې ما هغه پیژانده طاهر
افضل ته خان وروپیژاند ، افضل
حیران سو باور یې نه راتي
دطاهر ملګری عبدلملك پر
افضل توره وکښله طاهر
عبدالملك منع کړ څو ملك بې له
دې نه چې غږ واوري نیزه یې
دافضل تر ټټر بوته وختله.

***

داسلام قواو سره خلک ډېر
یوځای سول او طاهر هم له دې
امله چې حج نږدې وو مدینې ته
روان سو څو خپل په تبلیغاتو
خلک خپل په پلوی هم غړې
کړي.

***

سلطان اذر بایجان هم له
سردارانو نه ونیو کله چې
ګرجستان او تفلیس ته یې مخه
کړه هلته یې هم فتحې
حیرانوونکې وې.

***

مغلو بیا ډېر سیمې ونیولې او
سلطان هم دمقاومت زور خان
کېنې نه لیدی له همدې امله تر
شا کیدی خو دچنګیز مړینه
دتاتاریانو (مغلو) روحیه ضعیفه
کړه او سلطان د جګړو وروسته
ډیری سیمې بیرته ونیولې.
طاهر مهلب دښار ناظم ونیوی
او سیند ته یې غورځوی. اته
ویشت کاله تیر سول دچنګیز
لمسي (هلاکو) پرایران واکمن
وو. او په پای کېنې دخلیفه
خیانتونه رسوا سول.
دښار هغه با تجر به مناظره
کونکي چې تل یې یو پر بل دکفر
فتوې ورکولې اوانعامونه یې
کټل دسوغاتونو سره یوځای
هلاکو ته راغلل خو دیوه هم
ژوند بیرته را ستنیدل نصیب نه
سو. دعباسي خلافت وروستی
دسترګو توریې دوژلو په ځای په
لیمځی کېنې وپیچه او دفیل
پښوته یې وغورځاوه او چې کله
هلاکوته داشك پیداسو چې
ځینې خلک دده توری له دم او
داور له لمبو نه غلې سوې دي
اود کورونو په تل خونو کېنې پټ
دي نو هغه دسیند بندونه ونړاوه
چې دهلاکو له بیرته ستنیدو
وروسته په بغداد کېنې له سپیو
او کارغانو پرته نور څه ژوندي
پاتي نه وو بغداد دماضي
داستان سوی و او دبغداد اولس
خپل کرلی ریبل

# پښتو هنري نثر ته اړتیا

عبدالغفور (لیوال)

**ځوانو لیکوالوته یووړاندیز**

دوه یادرې وروستۍ لسیزې په افغانستان کې دپښتو شعر دمانیزې او شمیریزې لوړتیا کلونه وو. او اوس داپه ډاډ ویلای شو چې زموږ شعر نه یوازې داچې دنورو ژبو له شعري بهیر سره سیال دی بلکې تر ډیره یې یو سر او غاړه لوړه هم ده. خو له کمه مرغه چې نثر مو لادهغه پیاوړتوب ته نه دی رسیدلی، په تیره بیا هنري نثر چې اوس په نړۍ کې دا دبیاتو یو خورا دغوونکی توکی ګڼل کیږي. له یو څو ناولونو پرته، چې په دی ورستیو وختونو کې چاپ او خپاره شوي دي او همداراز یو څو کیسه یې غونډونو څخه ورها خوا زموږ دهنري نثر لیکنه د پای په ټکي وربرابر یږي. موږ که یوځو نثرونه لیکو هم ترډیرو څیړنو، سیاسي اوتاریخي خاطراتو ځینو مسلکي ژباړو اوتالیفونو پرته بل څه نه دي. داستونزه خوبیاهغه وخت ښکروره شي چې سړی دځواني لیکوالی بهیر ته ځیر شي. زموږځوانان دشعر له لیکلو سره ډیره مینه ښیي او له هنري نثر سره یوځه ز رو ښکار. ددي له پاره چې خپلي خبري یوڅه عملي مطرح کړو دهنري نثر په پیژندنه به لاس پوري کړو.هره هغه ادبي لیکنه چې منظومه نوي اوهنري ارزښت ولري هنري نثرونه ورته ویلای شي. کیسې (لنډې او اوږدې) افسانوي طرحې، ناول، رومان،طنز، ادبي ټوټې،نکلونه اونور ادبي ژانرونه یې ممتاز استازې دي.

دیوه ادبی کره کتونکي (چې لیك نې یې نړیوال شهرت لري) په اند شلمه پیړۍ درومان پیړۍ وه.

په تیره بیا هغه وخت چې نوې اروا پوهنه دشلمي پیړۍ په اوږدوکي دنوي اومستقلي پوهنې په توګه مطرح شوه نو ډیر ژر یې ادبي لیکنو ته نفوذوکړ. ګڼ شمیر ارواییې مسایل، حساسیتونه بیلا بیل احساسات او ارواییې عقدو درومانونو، لنډو کیسو او ناولونو له ګریوان څخه سرونه راښکاره کړل، روماتیزم په عجله خپل ځای ریالیزم اویو ډول سوریالیزم او په پای کې جادویي ریالیزم ته پرېښود نور نود پولیسي ناولونو لوستونکي ورځ په ورځ کمیدل اوټولو ادبي ذوقونو هڅه کوله له اظطراب، ویرې او ولولو څخه ډکوروانی رومانونو ته مخه وکړي. داټول لاملونه وو چې په نړیواله سطحه یې هنري نثر ته چټکه پرمختیا وربه برخه کړه. مګر دلته په افغانستان کې دې خواته پاملرنه لږ وه (البته موږ هیڅکله ددې طرفدارنه یو چې موږ دې هرومروخان دنورو په تقلید مجبور وګڼو اوڅه چې نور کوي موږ یې هم وکړو. خبره دشکل دتقلید نه ده بلکې دفرهنګي غنا اوبډاینې مسئله مطرح ده) که څه هم چې دلته هیڅ ادبي (ایزم) هم دمنلو وړنه دی ځکه چې ښایې زموږ له ملي. عقیدوي اوفرهنګي اصالتونو او خصوصیاتو سره چندان جوړنه وي، زموږ ټولنه ځانته عقیدوي، ملي اوفدهنګي ارزښتونه لري، ملي ویاړونه لري، او اصیل اسلامي فرهنګ لري، مګر دکمیت اوکیفیت له مخې ښایې دې ته پاملرنه وسي چې موږهم کولای شو دهم دغو ملي او اسلامي ارزښتونوپه رڼا کې اوچت اثار وړاندې کړو اودنورولاسونه لاندې کړو.

له همدې ځایه ده چې دهنري نثر لیکنې داسي پروسي ته اړتیا لیدل کیږي چې هم دې اسلامي او افغاني خصوصیات ولري اودغه ارزښتونه په ځی کې راونغاړي اوهم له نړیوالو ادبي پهیونو سره سیالی وکړای شي دغې موخې ته درسیدو پاره زموږ ډیري سترګې ځوانانو ته و ر اوړې ځوان ادبي بهیر باید له نویو تجربو سره پر مخ ولاړشي څرنګه چې داکار دشعر په برخه کې شودی کیدای شي دهنري نثر په برخه کې هم وشي. له نیکه مرغه چې په افغاني ټولنی کې دداسي لیکنو پله پاره پراخه زمینه سته، زموږ سپیڅلي او استکبار را ړیرزونکی جهاد ډیرې داسي خاطرې په ځان کې لري چې لوی لوی رومانونه اوکیسې پرې لیکل کیدای شي. له دووزبر خواکونو (انګریز اوروس) سره دافغانانو اسلامي اوملي مقاومت کولای شي دځوانانو له پاره لوی موضوعي او منځ پانګیز مخزن شي ډیري کیسې دولسونو اوقومونو تر منځ وجود لري. دیوغازي دژوند کیسه ، دیو شهید اتلواله دیوې بې وسي او مسلماني کورنی سپیڅلي مقاومت دا ټول ښایې زموږ دهنري نثر په پانو کې په تلپاتې اثاروتبدیل شي. اوداکار دوه ګټې لري یوخوبه زموږ دفرهنګي ځوان بهیر اسلامي اوملي مسئولیت رفع شي اوبل به مودهنري نثر پانګه بډایه شي.

چوکاټ او ادبي تیورۍ دکسب له پاره ځینې مقدماتي زده کړې اومطالعې ته اړتیا شته چې کیدای شي ځوان نسل یې دګڼ شمیر اثاروپه لوستلو سره ترلاسه کړي اوبیا وروسته لیکنی ته متې داونغاړي. داطبیعي خبره ده چې هرپیل به له ځینو نیمګړ تیاوو سره یو ځای وي، خوکیدای شي له یو څه مهال وروسته (انشاالله) له ډیرو لوړو او عالي ادبي بیلګو سره مخامخ شو. دځینو بهرنیو اثارو لوستل (چې زموږله عقیدوي اوملي اساساتوسره ټکرونه لري) اولای شي له ځوانانو سره مرسته وکړي چې خپل طرحه څه ډول ارایه کړي حتی ځینې همداسي اثار سته چې په لومړي خل کولای شي یو ځوان ته دڅه لیکلو تلوسه پیداکړي. ځوانان کولای شي له لنډو کیسو څخه پیل وکړي او بیا وروسته لویې تجربې هم وکړي ددې چارې دتر سره کیدو له پاره مشرو لیکلوا لو، استادانو انو پوهانو ته په کارده چې نو یو ادبي پهرنیو ته خپلې سالمې مورې او لارښوني مړه سپموي. دهغې ورځې په هیلهٔ چې دبډای اسلامي اوملي فرنهګ په لمن کې دهندې نثر درنه پانګه ولرو.

# رنك




ستا له سترګو نه مي زړه اخيستی رنګ دی
او ستا سترګو له آسمانه وړی رنګ دی
داچي دواړه په يوه رنګ باندي رنګ يو
بيا نو ولی ای جانانه !؟
ته خوشاله
زه خپه يم .

نور محمد «لاهو»
کابل

# هنري انځورونه ادبي ولولي

## توته

«شکيب» په ميوند کښي

ټپي د ژوندون لاړي ، خو يادونه لا ژوندی دی
د وخت په تصور کښي بی ويرونه لا ژوندی دی
دلبر دی ، که رقيب دی ، دواړه ستا په نوم نازيږي
د نن په هر ميوند کښي ګذارونه لا ژوندی دی

## غزل

آشنا ! ژمنه پخه د ياراني لرمه زه
خو ستا شك ته په زړه کښي انديښني لرمه زه

تورن مي ګوره ! نکړي چي سرتير د ميني نه يم
شاهدی پر اوړو دوي پرښتي لرمه زه

ايري د تغافل چي د رقيب سترګو ته پاشی
ډير خوښ دي دغه خوی د پښتني لرمه زه

په تيښته نه خلاصيږي، ډير د خيال منډه کي تيز يم
خير پښتي که د وجود کړي ، وړي لرمه زه

عبدالأحمد «محمديار»
۱ / ۱۲ / ۱٤۱۹

# د جګ غره لمن

ولاړم یوه ورځ د هغه جګ غره ولمنې ته
زړه مې وه ښه کړی د وختونو و پوښتنې ته
کړی یې خیرات د کانو بوټو او ګور ګورو و
خلاصه یې لمن د عامو خاصو و غوښتنې ته

دنګه یې څېره وه مشرتوب یې د قرنونو و
سترګو کې نظر یې د وختونو د وختونو و
زور او له قوت سره عجیبه حوصله یې وه
کړی ډېرو خلکو پرې د تېر ګذارونه وو

هلته یې وتلې له رګونو د چینې اوبه
ډېرې زړه راښکونکې وې بې رنګه او رڼې اوبه
ږغ یې د مستۍ پورته کېده له شورهار څخه
ژر مې وڅښلې لپې لپې دا سړې اوبه

هلته یې له کونجه د شپېلۍ خوږه نغمه راتله
دلته یې په کانو کې خوره وره رمه راتله
هلته کې ماشومې غوټۍ نوې غوړېدلې وې
بیايې څنګېدو ته د نسیم خوږه وږمه راتله

څو شېبې یې نه را ته کتلو له غرور څخه
بیايې راته راکړه ستړې مشه له ضرور څخه
خوی د پښتنو یې په هر کاڼي کې ګډ شوی و
ښه میلمه پالنه یې کوله له حضور څخه

وېی وېل راشه دغه سخر ته مې تکیه وکړه
ډېره ستړې شوی یې په غېږکې مې دمه وکړه
ما په څو وړو وړو خبرو ورنه وپوښتل
ماته د زړو زړو پېړیو نه کیسه وکړه

وېی وېل ډېرې مې لیدلې د دوران کیسې
څو به درته وکړم د سکندر او سلیمان کیسې
هر ډول سزا د مجرمانو مې لیدلې ده
څو به در ته وکړمه له نوحه د طوفان کیسې

خلك مې لیدلي له پېړیو پخوانو څخه
ډېر څه مې په یاد دي له ثواب او ګناهو څخه
چا په کروندو د ژوندانه کې ګلان وکرل
چا راته پرېښې سیمه ډکه له اغزو څخه

څومره نظرونه مې پر څوکو لګېدلي دي
څومره مستانه زما وسیل ته راغلي دي
دلته لوبېدل چې به د لمر زرینو وړانګو ته
نن یې چېرته نه وینم د مرګ کندې ته تللي دي

زه یم دلته زه یمه چې سیل د جهان کوم
دي استقامت کې خدمتونه د انسان کوم
څوك چې د «زاهد» په څېر خواله ته مې راغلي دي
زه ورته خوږې، خوږې خبرې د زمان کوم

حنیفه «زاهد»
زابل - شاه جوی



## شمعه



صالح محمد «صالح»

گـــوره ! دا دې څـــــله د آزار لمنه ونیوه ؟
درد غـوندي دي زړه کښې د پرهـــــار لمنه ونیوه

توري توري شپې یې نښیـــــدلی په رگـــونو کښې
مــــاچي د کوڅیو د هرتــــــار لمنه ونیوه

اوښــــــــکي مي دي پېښو ته ننواتو ته درپریوتې
نن دي لـــــــــــکه عمر د تلوار لمنه ونیوه

زه هم د نـکهت د سلسـلې غونـــدي بې واکه ځم
زمـــا سره نسیــــم چي د گلـــزار لمنه ونیوه

اوس مي روح کښې گرزي د منصور د اناالحق کړیکي
خیـــال چي بیخودۍ کښې د کوم دار لمنه ونیوه

مینــــه کښې یې رنگ د حقیقت سترگو ته نه راتې
ډېر مـي دی مـــالت کښې د هوښیار لمنه ونیوه

بیا اچوی تـــــال د لوپټې څنډې یې غوټې کړې
پیغلو په گودر کښې د چنـــــــار لمنه ونیوه

تاج له لمبو ږدمه د وفـــــا مرحلې داسې وې
مادي لــکه شمعـــه د مـــزار لمنه ونیوه



## آرزو

مطمئن

مســـــافر یمه نگاره! ناز مي واخله
ورکه کړي مي ده لاره نـــاز مي واخله

ترمابنـــامه مي په وینو کانې سره شول
اوس به ژاړم تر سهـــاره ناز مي واخله

جـدایی وه زړه مي راوړ، ستا درشل ته
زما د خوږ زړگي لپـــاره ناز مي واخله

پوهیدمه چي په مخـکې خزان پروت دی
درته راغلم له بهـــاره نـــاز مي واخله

څو څو ځله مي پر سر کاڼي امبـــار شول
مرور یم له دې ښـــاره ناز مي واخله

دشمـــال د لوړو څوکو مسلمـــانه !
زه راځم له کنـدهـــاره ناز مي واخله

ستا په څنگ کي یو ښامار(۱)راسره مړ کړه
له سالنـــگ نه تر تخاره ناز مي واخله

ما راوړي انعـــامونه قـــرآني دي
یو به درکړم له دســـتاره ناز مي واخله

که هم داســـویه ترلاسه «مطمئن» کړه
شي به خلاص له انتظـــاره ناز مي واخله

(۱) مسعود
دا شعر د بدخشان هغه طالب ته لیکل شویدی ؛ چي د امارت په حمایت یې بیرغ اوچت کړی او مقابلي ته حاضرېږي .

## خپل عمل

اولسی شاعر عبدالقدیر «محرر»

ز‌ه چي و خپل عمل ته گورم وارخطا یمه — خود به په ژړا یمه = خود به په ژړا یمه
د گناه بار مي ډیر سنگین دی ، بینوا یمه — خود به په ژړا یمه = خود به په ژړا یمه
ژوند د دنیا راته سور اور دی = د خپل پردی راته پیغور دی = زړه مي دننه سوی سکور دی
لعین په دام کي اچولی مبتلا یمه
خود به په ژړا یمه = خود به په ژړا یمه
ژوندون عبس راباندي تیر شو = غم مي په زړه باندي چاپیر شو = ذکر او فکر راڅه هیر شو
دومره لا شکر چي په دین د مصطفی یمه
خود به په ژړا یمه = خود به په ژړا یمه
د یا الله ناري وهمه خدایه ! = چي بله هیله نلرمه خدایه! = غواړم توفیق ستا له کرمه خدایه !
که را عطا کړي خپل توفیق زه شهنشاه یمه
خود به په ژړا یمه = خود به په ژړا یمه
چي له عدم نه دي موجود کړمه = بیا دي په خپل فضل مخلوق کړمه = هم دي په دین د خپل معشوق کړمه
اوس نو توفیق راکړي همیش په دي صدا یمه
خود به په ژړا یمه = خود به په ژړا یمه
خدایه ! په روی د انبیاؤ = د چاریارانو اتقیاؤ = بیا د کاملو اولیاؤ
ستا معرفت راکړي ناقص او بینوا یمه
خود به په ژړا یمه = خود به په ژړا یمه
که امیران که سرداران دی = ټول ستا ودرته محتاجان دی = په بندگی ستا قائلان دی
عبدالقدیر «محرر» عاجز او بینوا یمه — خود به په ژړا یمه = خود به په ژړا یمه

## خوږمن زړه

عبدالرازق «مظلوم یار»

خدای مي ښه په حال خبر دی د مین زړه
بل نه هیڅ نه ښکاره کیږي دا خوږمن زړه
که مي واړه وجود سترگي سي د وصل
موږ به نسي د آشنا په خوږ دیدن زړه
وبي دردو ته احتیاج کړم حال مي داسو
هسي چاري په ما وکړلي ښادمن زړه
فقط نو تمال بی خوړلی دی د میني
په کوگل کي قرار نکړي گیلمن زړه
په ... عبدالرازق د میني
«مظلوم یار» یم گرځوم پرهر وطن زړه

## ځکه وغوړیده

محمد سرور «حسن یار»

غوټی وه پټه خوله نیولی د خزان له ویري
سبا په ورو ورو تخنوله ځکه وغوړیده
سبلی ځیلی وه د گل ځانگه د باد په لاسو
ورمه په ناز پري تاویدله حکه وغوړیده
فلك اغوستی ؤ د شپي لباس ولاړ په حیرت
ورځ یی په غیږ کي اوښتله ځکه وغوړیده
هجر وهلي وه د یار په خیال کي ډوبه ناسته
چي یي ترغوږ سوه دا غزله ځکه وغوړیده

# کندهار

## یوه تاریخي څیړنه

دفیض محمد نومیر لیکنه

کند هار د تاریخ په اوږدو کې ډېر لرغونی اود ویاړه ډک تاریخ لري د خپل موقیعت په لحاظ دډیري پخوانی زمانې څخه داسیا یوه مهمه سیمه شمیرل کیږي ډیر مدنیتو نه یې تیر کړي دي د تجارت او د ثوق الجیبشي دلحاظه هم مرکز وو.

سرسبیره پر دې تر میلاد څو پیړی مخکې کندهار دلوړ کلتور اوپوره مدنیت خاوند وو. هغه اسناد چی دکندهار په زاړه ښار کې پیداشوي تر میلاد دمخه زمانه اودسکندر راتګ ښیي نو لدې څخه دا ویلا سو چی کندهار د یوه مدنیت مرکزوو.

هراویتي:

دزند، اوستا او داستي نور تاریخي او مذهبي کتابونه د اریا ئیانو په باره کې زیات معلومات څر ګندوي داوستا د کتاب د اثارو او شواهدو څخه پوره ښکاره کیږي چی دپنځه سوه شل (۵۲۰) ق م په شاوخوا کې اریایانو زردشتي دین ته عقیده درلوره او د اریا ئیانو لومړی مرکز دبلخ ښار وو په بلخ کې میشته وه او د دغه خای څخه یې نورو سیمو ته کوچ کړی دی.

اول_ هغو اریایانو چی دابا سیند دلاري څخه هند ته کوچ وکړ هغو ته هندی اریایان وائي.

دوهم_ هغه ډلي چی بیا دهندوکش او هریرود دلاري څخه ایران ته هجرت وکی هغه ته ایراني اریائیان ویل کیږي.

دریم _ هغه اریائیان چی د پخواني افغانستان په مرکزي سیمو کې تیت شول هغ ډله باختري اریائیان وبلل شوه.

اریائیانو تر کوچ دمخه او تر کوچ وروسته زردشتي دین ته عقیده درلوده د ختیځ پوهان او تاریخ لیکونکي دا مني چی دوی زردشتي دین درلود.

اریائیان سربیره پر دې چی زر دشتي دین یې دلودی داعقیده یې هم پیداکړه چی په نړۍ کې دوه عنصره شته چی یو عنصر دنیکي او بل عنصر دبدی دی.

دنیکي ار باب النوع هرمزد نومیدی اودبدی ارباب النوع اهریمن وودنیکی ارباب النوع په اریانا کي شپاړس سیمي ودانی کړي. دبدي ربالنوع اهریمن بیا په هره سیمه کي په یو لړ خسارو لاس پوري کی هغه سیمي چی هر مزد وداني کړي وي په لاندي ډول دي.

اول_ ایریانم ویجو بلخ او بدخشان .دوهم_ سغده_دوهمه توته ښه ځمکه ده چی په هغي کي سغدیان اوسیدل او اهریمن په دغه ځای کي ملخان منځ ته راوړل چی فصلونه او کښتونه وخوري او په نباتاتو او حیواناتو کي مرضونه پیداشي.

دریم_ مورو_ دمرغاب مرود حوزې څخه عبارت ده اهر یمن پدغه سیمه کي اړ ودوړ او چور وچپاو منځ ته راوستی او دغه سیمه همیشه دتور انیانو دالې ګولې ډګر وو.

څلورم_ بخدی باختر.

پنځم_ نیسایاد مروي او باختر تر منځ په دغه سیمه کي اهریمن بې اعتقادي خپره او رواج کړه.

شپږم_ هرَي هرات_ اهریمن پدغه سیمه کي دمړي دپاره ژړا اوغم رواج کړ.

اووم_ ویکره ته چې دکابل د حوزې څخه عبارت ده. اهریمن پدغه سیمه کي دبت پرستی مفکوره خپره کړه او زردشتي دین یې په بودایې دین واړاوه.

اتم_ او روا یا او روه ګون اهریمن د دغه ځای په اوسیدونکو کي غرور پیداکړ.

نهم_ خننتا هیر کا ینا یا ګر ګان.

لسم_ هروایتي کندهار یا ارغنداو. دغه تو ته اعلی خمکه هري ویتي بنکلی اوسمسوره حوزه چې په اوستا کي دښکلی او ښایسته په صفت یاده شوې ده او هغه شی چه اهریمن پدغه ځای کي رواج کړ دمړي سوځل وه.

یولسم_ ای تو منت دهلمند او سیستان دناې څخه عبارت ده اهریمن پدغه ځای کي جادو او جادوګري رواج کړه.

دولسم_ راګا یاره ګه درې څخه عبارت ده.

دیارلسم_ کخره دغزني څخه عبارت دی.

څورالسم_ ورنایاورنه ښایي چې دبامیان او بند امیر وي یاوانا دي وزیرستان وي.

پدې علاقه کي ترې تو نا یعني فریدون د اژهي دها کا قا تل زیږیدلی دی.

پنځلسم_ سپتا سندویا هپته هندو اوه سندونه چې دسند د حوزې څخه عبارت دی او اهریمن پدغه سیمه کي ډیره تودوخي اوزیات حرارت پیداکړ.

شپاړسم_ رانګه یا رانګا_ ددغي سیمي څخه مقصد دسردریا د سرچینې سره متصله حوزه یا ځمکي وې.

اوس به راشو خپل اصلي مقصد یعني کندهار ته.

د اوستا کتاب لیکلی دی چې هراویتي داریانا سیمه توته ښکلي ښایسته او حاصل خیزه ځمکه ده اوستا دغه نوم د ارغنداو ښکلې

او ښاسیته سیمه علاقې ته ورکړی دی. دهر ا کلمه د اریانا د پخوانی ربنې نمایندګي کوي دغه نوم دغه ځای ته اوستا او نورو متونو راوړی دی چې دختیځ دپوهانو او هیڅا تر مابین پکې د مناقشې څرک نشته مطلب دا چې توله یې مني او په یو سلایې تائیدوي هر اویتې د ارغنداو وادی ده لکه چې ځیني کتابونه یې په لاندي ډول راوړي.

سر پرسي سایکس لیکی.

چې او ستا کتاب لیکلی دی چې هر اویتي د اریانا سیمه توته ښکلی ښایسته او حاصل خیزه ښکلی او ښایسته او علاقې ته ورکړي دی. دهر اکلمه د اریانا د پخواني ریښې نمایندګي کوي دغه نوم دغه ځای ته اوستا او نورو متونو راوړی دی چې دختیځ دپوهانو او هیڅا تر مابین پکي د مناقشې څرک نشته مطلب دا چې توله یې مني او په یوه سلایي تائیدوي هراویتي دارغنداو وادی ده لکه چې ځیني کتابونه یې په لاندي ډول راوړي.

سرپرسي سایکس لیکي.

چې اوستا زړې پارسي مینانوو هرا هوایتي ته په یوناني بیا کلا

سيکي دوره کي ازاخوتيس يا اراخوزيا ويل شوی دی او په اوس کي دارغنداو رود بلل کيږي.
وروسته بيا پسي ليکي دکندهار نوم د هيرودوتس پۀ ليکنو کښي هر يو واتې او په منځنيو پيريو کښي اراکوسيا يا اراکوزيا وو.
راپسن هم پدې باب داسي ليکلي دي. هغه اورشو کومه چې اوسني کندهار بلل کيږي په اوستا کښي دهرا هوايتي په زره پارسي کښي دهرا وايتي او په يوناي کي داراکوزي په نومو بوولی شوی ده.
پدې کي شک او شبهه نشته چي دريګ ويد سرودونو او دويدې زمانې شاعرانو شرقي او جنوبي اريانا بنه پيژندله څيني کسان دغه عقيده لري چي دارغنداو او اراکوزی حوزه هم دجغرافيې په لحاظ دريګ ويد په سرودنو کي ياده شوې ده ددې نظر يې لوی طرفدار هلبرانت دی.
هغه کسان چې ددې نظر يې طرفداران دي څه دليل لري، اوهغه کسان چې بيا ددې نظر يې طرفداران ندي څه دليل وراندي کوي؟دريګ ويد په سرګودونو کي يو سيند څو ځله دسراسواتي په نامه ياد شوي دی څيني کسان لکه مکس مولر اوکيت دغه سند دسُروستي سيند بولي چې دبر همني زمانې دسراسواتي ځخه عبارت دی اويو کوچنی سيند دی چې د امبالی له جنوب ځخه تيريږي او دسيند هو سيند ته د رسيدلو ځخه پخوا په لارکی په شګو کی جذبيږي حال داچی په ريګ ويد کي يادشوی سراسواتي هغه لوی سيند دی چې دديرو لويو سيندونو په صفت يا شوی دی خو بر همني سراسواتي چې حوزه يې تنګه ده په سرچينه کي واوره نلري او په لارکی وچيږي بيخي په لويو سيندونو کي نه ګڼل کيږي.
يوه ډله مرققين چی روت او زيمر او برت پدغه ډلۀ کي دی دانظر په لري چې د ريګ ويد سراسواتي داندوس سند سيند دی هرکله چي پخپله داندوس سيند زياتره دسيند هو په نامه ياشوی دی نو ويلای شو چی دريګ ويد اسراسواتي به د هغو نه يوبل سيند وي لدې کبله څيني مدققين په تيره بيا هلبر انت دغه عقيده لري چې دريګ ويد له سراسواتي ځخه مقصد دارغنداو سيند دی چی په اوستا کي او دزند دزند رغيير قانون په مخي (س) يې په (هه) بدل شوي او هراويتي ويل کيږي.
دهلبرانت دغه نظريه دځينو پوهانو اۀ عالمانو دپاملرني وړوګرځيدله کول يې هم زموږ دمقصد تائيدکوي دادي چې د سراسواتي سيند لګه چی ومووبل په ويدي ادبياتو کي دړک سيند اوډيرو اوبه لرونکی سيند په مانا راغلی دی په دي مانا کي هروايتي د دغه سيند او ستا يې نوم هم پټ پروت او مضمر دی او ارغنداو بيخي همدغه مانا ورکوي ځکه چی دغه اوسنی نوم لدغه دوو کلمو او ارغنداو ځخه جوړ شوی دی چی دقهرجن قهرناک او تيز په مانا دی او په اصطلاحي ډول هغه ته مست او ډک سيند ويل کيدای سي.

### اراکوزيا

اراکوزيا چې د کندهار پخواني نوم دی په اصل کي و ارغنداو ته ويل کيده.
ځکه نو اويجه چی داراکوزيا په وادی کي يې مرکزيت او اهميت درلود پدغه نامه سره بللۀ شوې

ده . اوستا او ویدا چې نن ورخ
وموږته راپاته دی اراکوزیا به
دلته دنوموړو کتابو له مخې
وڅیړو.
لومړی هغه کتاب چې نږدې درې
نیم زره کاله دمخه تر نن ورځې
کښل شوی دی او داریانا
اوهندخیني بحثونه او بیانونه
لري، ویدادی چې وارغنداوته
سراسواتي یا سراسوه تي وايي.
دوهم کتاب اوستا چې تر لومړنی
نږدې څلور سوه کاله وروسته
لیکل سوی دی. دغه کتاب
دارغنداو سیند د اهراویتي یا
هراهوتي په نامه یادوي چې
داریانا لسمه ښکلې ځمکه ده
احمد علی کهزاد هم داسي لیکلي
دي چې دویدا سراسواتي او
داوستا هراویتي دښه ناوي
رودخانې معنی ورکوي او کولای
سو چې داصطلاح په صورت یې
په لوی سیند سره تر جمه کړو.
دغه رود دبطلیموس د یادوني په
اساس اراکوتس بلل کیدی چې
پرته له اندوس څخه وو
داراکوتس سیند چې بطلیموس
یاد کړی دی دانه معلومیږي چې
کوم سیند به وي ځکه چې
داراکوزیا په ولایت کې څو
سیندونه موجود دي چې تر ټولو
خورا ستر یې دهلمند سیند دی
چې پخوا دایتي ماندر، هر
مندوس او اری مانتس په نومو
بلل شوی دی دا سیند له هغو
غرو څخه راکښته شوی دی چې
دکابل لویدیخ ته پراته دي او
دغه سیند دجنوب لویدیځ خواته
روان دی او ریګستان پوري تللی
دی او لدغه ځایه شمال غربي پلو
ته راکږیږي او دسیستان له یوې
حصې څخه تیر شوی او درزي
په بند کي توئیږي.
بو نوف دغه سیند له اراکوتس
څخه عبارت بولي او داراکوتی
اصطلاح یې له زند څخه ورته
پیداکړې ده چې داد زند کلمه په
سنسکریت کي له سراسوتي څخه
نمایندګي کوي او معنی یې په
عمومي مفهوم سره هغه سیند دی
چې له کوم غدیر سره ارتباط
ونلري، مګر دولسن دنظر یاتو
څخه څرګندیږي چې د اراکوزي
سیند له ارغنداو څخه عبارت
دی چې دترنک دسیند په نامه
یې دغزني له نږدې ځمکي څخه
سرچینې خیستی اودیو کوچني
غدیر څخه تیریږي او په ارغنداو
کی ورتویږی ځکه چې دارغنداو
یا ارکنداو د اراکوزیا سیند
اثبات ته رسوي مګر داراکوتس
دسرچینو او دجریان په باب
خصوصي او کامل معلومات په
لاس کي نشته.
پورته دونه یادونه وشوه چې
دارغنداو دسیند نوم په ویداکي
سراسواتي په اوستا کي دهراویتي
په زره پارسي کي هرواتي
دیونان مشهور تاریخ لیکونکي
هیرودوت په خپلو اثارو کي
هراوایتي یاد کړي دي اونورو
یوناني لیکونکو بیا دارخیز یا
اراکوسیا او اراکوزیا په نو مو
راوړی دی عربو بیا دغه نوم
الرخج او الرخجچسو کښلی دی
چې په اوس کي ارغند یا ارغنداو
دی.
دلوړ نو مو دغه توپید هم له یوې
خواڅخه له هغو ژبینو مختلفو
لهجو څخه پیداشوی دی چې
دلته یې د ارغنداو پر غاړه په
بیلو بیلو برخو او بیلو زمانو کي
ژوند او اوسیدنه کړې ده دبلې
خوا څخه هغو پر دیو مورخینو او
جغرافیه لیکونکو دغه نوم تر یوې
اندازې پوري له خپلې لهجې
سره سم تعریف کړی او کښلی
دی.

په هره توګه خو دغه ټوله نوموړنه یودي. یوه ریښه او یوه معنی لري او یوه ځای ته ویل شوي دی همدغه رنګه یې دفلا لو جي له اصولو سره سم اوښتنه او تحول میندلی دی.

کله چې داراکوزیا په ناوه کې دویدي عصر دعناصر پرستی دیوه بله وه ودغي ناوې ته دیوې مقدسي رودخانې په توګه سراسواتي ویله کیده مګر کوم وخت چې د ویدي مدنیت کمبله ټوله شوه اود اوستایي مدنیت دراتلو سره سم دغه ناوه دهغو دلهجې په مطابق هراهواتي بلله شوې ده دنوموړو دوو ویدي او اوستایي ژبو ترمنځ اکثره (هـ) او . س. سره اوړي او لدې پلوه ډیر مثالونه شته چې ځیني یې راوړلو لکه:

ویدی _ اوستایي _ پښتو
سیند _ هند _ _ سیند
سوما_هوما_اومه_اومان
سپته _ هپته _ اووه
سو سوره_ هوسوره_خوسر

اوس چې مود اوستا د هـ او دویدا د س ترمنځ په ځینو کلمو کې مقایسه ولیدله. نوبه د اوستا هراهواتي تر ځیړني لاندي ونیسو.

داخو ډیره تطبیقي خبره ده چي هـ او همزه سره اوړي لکه:

هیلی _ ایلی
هنداره_ ایںداره
هلک _ الک
هستوګنه_استوګنه
هوسی_اوسی

په همدې شاني سره له هراهوتي ځخه اراهوتي جوړیدلای شي.

دفلا لوجی د اصولو سره سم هـ په خ سره اوښتلای شي لکه:

اوستا _ پښتو _ دري
هوسرو_خوابنې_خشو
هوریته_خوړل_ خوردن

له همدې پلوه ارهواتي په اراخوتي سره اوښتی اود یونانیانو او عربانو دثبت کړه شوي ارخیزیا او اوراخج د خې توری یې پوره نمایندګي کولای شی.

ځرنګه چې خ او ک وتوخی (مخرجونه) دنورو تورو غوندي سره نژدې او پرځنګ دي ځکه نو دوی هم دمقتضا سره سم ځله اوري لکه دا لاندي مثالونه:

پښتو _ سنسکریت _ اوستا
کښي _ ککشي _ کخشي
مخ _ موکه _ موخه
نوک _ نکهه _ دري ناخن
باختر_ باکهتر_دري باختر
خاشه _ کشا_دري کاه
خپړ _ کپهه_دري کف

دپورتنیو مثالو له مخي ځخه دا ښه ترا ښکاره کیږي چې له اراخوتي ځخه اراکوتي هم منځ ته راتلای شي چې دیو نانیانو ضبط کړه شوی اراکوتس یې لا ښه معرفي کوي.

وروستني کا نسوننټ توری او دده نور ځنګ ته وتوځې قریب المخرجه توری ددې قابلیت لري چې په زاویا دزېه ځنګ ته وتو ځو تورو سره دی واړوي لکه:

زما _ زموږ

همدارنګه په پښتو کي ډیر داسي اشتقاقي اوښتنی چی له زځخه په ت اوله تی ځخه په ز اوړي شته.

نوځکه داویلای شو چې د اراکوتي په اراکوزي سره اوښتي ده.

وروسته تر پورتنیو تحولاتو دسراسوتي بیا هراهوتي او بیا داراکوزیا نو اختیار کړی دی او دیونانیانو له خواځخه هم پدغه نامه سره ثبت شوی دی مګر کله چی عرب دغي ناوي ته راغلی

دی ددغه اراکوزیا یا اراخیزیا الرخج او الر خجسو دز توری یې په ج بدل کری دی.
دارغنداو کلمه د دوو جزو څخه جوړه شوې ده چی ارغندیا ارخنج د ن په زیاتوب سره او (اوبه) دي د الرغند کلمه چی معنی یې خوروښناک او تیز ده سربیره پر دغه باندی داکلمه په پښتو کي کد ارغوند په توګه هم شته چی دغښ کروړ او زورور معنی ورکوي .
دترکیب له مخي هم دغه کلمه کله ارغنداب ارغنداب او ارغنداو دڅپانده اوبو یا زورور اوبو معنی ورکوي.
دا مینه له پخوا څخه ډیره ښکلې، ودانه او د اوسیدني وړ وه چی جغرافیوي حدود یې پدې ډول دي.
دشمال خواته یې غرج یا غور یا پارو پامیزاد دجنوب خواته یې ګدروز یا خدروزیا دختیخ لورته یې پکتیکا یا پختیخا او دلویدیځ پلوته یې سکا ستا نا یاسیستان واقع وو.
بطلیموس یوناني جغرافیه لیکونکی دپکتیا ولایت چی داریانا شرقي ولا یت دی هم د اراکوزیا جز. بولي نوموړی یوناني لیکونکی په خپلو اثاروکي دارخیز یا په ولایت کي دغه ښارونه یادوي چی عبارت دی له ازولا فوکلیسي. اراکوتس او سکندر یي څخه وو.
یو بل یوناني مورخ بیا ځیني نوي ښارونه هم پر زیاتوي لکه: بیوت، فرساک، کروشاد، دیمتیریاس، او پولس.
ازولا_دغه ښار چی د اراکوزیا دپخوانیو ښارو څخه دی بطلیموس یې دهلمند په پاسنی برخه کي ښیې یوبل مورخ چی ګننګهم نومیږي هم د ازولا په ټاکنه کي د بطلیموس قول تائیدوي.
فوکلیس_ بطلیموس دغه ښار په اراکوزیا کي دترنک دسیند پر غاړه د کندهار او غزني تر منځ دي نژدې د کلات په شاوخوا کي ښیې. او ګننګهم هغه د میتریاس سره یو شی بولي.
اسکندریه دکندها له ښار څخه عبارت دي او امکان لري له فرساګ سره هم تطبیق شي.
اراکوتس، د اراکوتس ارغنداو دسیند دغاړي دناخیې مرکز وو.
موقیعت یې د ارسترابو په قول دهغه ځای په دوه سوه دیرش انګریزي میلی کی دی.
بیوت یا بیت عبارت به دبیجس یا بست څخه وي. دلته په لنډ ډول سره دونه څرګندبه شوه چی اراکوزیا د ارغنداو او کندهار د منځنیو تاریخي دورو نوم دی چي تر اسلام دمخه یې دمصر دنیل غوندي لوړ مذهبي شان دلودی.
اوس به داخبره و څیرو چی سکندریه یا الګزاندریه چیري موقیعت درلودی او یا پر کوم ځای باندي اطلاق کیدل.
سکندریه-
کوم وخت چی سکندر د خپلي اومپراطوری دپر اختیا له پاره د اسیا لوی براعظم ته مخه راوکړه او اسیایې هیوادونه یې فتح کړل نو کله چی د اریانا سیمي ته راورسیدی نو د اراکوزیا په سیمه کي دخپل عادت مطابق یوه نظامي کلا د ارکوزي سکندریه په نامه ودانه کړه او یو شمیر عسکر یې پدغه ځای کي واچول ددې نظامي کلا موقیعت غالبا دکندهار دجنوب پلوته وو که چیري ددې سیمي زوړ او نوی ښار په نظر

کي ونيسو سکندر دغه نظامي کلا د کندهار د زاړه ښار اود احمدشا هي ښار سره يو درې کنجه مثلث تشکيلوي.

مکدوني سکندر ددې ځای دمحلي وګرو څخه عسکر ونيول او ممتن يې ددې ځای والي مقرر کړ.

ښاغلی فرير وايي دغه ښار داسياله هغو اوو ښارو څخه بلل شوی دی کوم چې لوی سکندر جوړ او ودان کړي دي.

ښاغلی احمدعلي کهزاد ويلي دي: هغه کتيبه چې دکندهار د زاړه ښار په لاره کې پيداشوه دايې ثابته کړه چې پدغه ځای کيې له قديمه څخه يو ښار وجود درلودی او حتی تر دې انده مهم وو چې ديونانيانو په زمانه کښې لاورته جوړې ډېرنې ليکنې شوې دي.

دغه يوازې ددې ښار دقدامت او زړښت دليل نه ګرزي بلکه سربيره پردې يې لا د اهميت مقام هم ښيي.

دهند کمبريجي تاريخ هم د کندهار زوړ ښاريه سکندريه سره توضيح کړی او ښوولی دی چې دغه ښار دنوموړي مکدوني له خوا څخه بنان شوی دی.

ښاغلی ولسن ليکي: هغه ښارونه چې پو تو لمي يې ولايت کې يادوي يو يې الکزاندريه ، اسکندريه ده چې عموما اوسنی کندهار ګڼل کيږي.

دهغو اروپايي جغرافيه ليکونکو له نظريو سره کوم چې پدغه ورشو کې ديوه ښارومو قيعت ته دسکندر يې دنامه نسبت کوي سر خوري خودلته بايد متوجه اوسو چې مکدوني سکندرولي اودڅه له پاره خپله سکندريه پدغه ځای کې جوړه کړه. څکه چې ده غوښته دښار هغه کلا فتح کړي کوم چې يې دده مخ بند کړی او په لا ري کې يې پرته وه دنوموړي سکندر يې جوړښت پدغې ورشو کې يوازې ديوې کلا وجود نه ايجابوي بلکه داښيي چې پدغه اويجه اويا ددې په شاوخواکې دې ډيرې نورې غټې کلا وې هم موجودې وې.

همدغه رنګه به يې سربيره پردې باندې ښايي دودانولو علت هم داوې چې دغې ورشو دختيځ اولويديځ تر منځ هم تجارت او هم لښکري اهميت درلودی.

ميجورلي ميسو ډير په خپل کتاب کې ليکي:

کله کله داسې ويل کيږي چې دغه ښار دکندهار لهراسپ جوړ او ودان کړی کوم چې هرات يې جوړ کړيدی.

ښاغلی کهزاد دا هم ليکلي چې د منديګ کيندنو د دغې ورشو مدنيت لا ډير دمخه ثابت کي او دغو حفر ياتو دا څرګنده کړه چې پدغه اويجه کې پينځه زره کاله دمخه هم پوره داسې مدنيت وجود دلودی لکه په موهنجي دارو کي چې وو.

نوله دغو څخه دا په ښکاره ثابتيږي چې ددغې ورشو ودانی ډيرې زړې او قديمې دې خينې تاريخونه او زاړه اسناد پردې باندې شاهدي ورکوي چې لوی سکندر پدغه اورشو کې دسکندريې په نامه يو ځای جوړ کړی دی.

که څه هم دکندهار نوم نسبتانوی ښکاري مګر دغه ددې دليل نسې کيدلا ی چې ددې ورشو ښار دي هم نوی وي. څکه چې دغه اويجه ډير زوړ او پخوانی تمدن لري حتی پخپله دغه ښار هم ډير دمخه جوړشوی دی.

# سید زموږ د کور شاته اوسیده

لنډه کیسه ———— نظری آریانا

چا ویل چي سید جمال الدین افغانی راغلی دی ، زموږ د کور شاته اوسیږي ؟ هو ، رښتیا ، علی گل دا خبره وکړه هغه زموږ ټوکي گاونډی چي په یوه ښوونځی کي مو لوست کړی دی ، خو ټولگي مو سره بیل وه .

دا د دوو کالو مخکي خبره ده . هوکي ، د وږم کال په اوړي کي یوه ورځ دوي نیمي بجي به وي چي له دفتره کورته راغلم ، ډوډۍ مي وخوړه ، د څه سودا اخیستو لپاره ووتم ، چي کتل مي علی گل په مخه راغی .

ما وویل :

څه کوی ، ولي پلی گرځي ؟! موټر دي څه کړ ؟

هغه وخندل او ویی ویل :

موږ ته خو به هم د پلی گرځیدو وار را رسیږي که نه !؟ پرېموږده چي دا خپلي غبرگي پښي هم یو وار آزمویو او وگورو چي د پښو تگ مو له یاده وتلی نه وی .

بیرېږي چي ورته اړ به سي ؟ وار مه خطا کوه ؛ داسي چي راته څرگنده ده تاسي هغه بلاوي یاست چي چیرته مو سل پلا نه وی آزمویلی یو پلا هم پښه نه ایږدي ، نه چي مړه خاوره یا کومه کنده نه وی . او غوڅار مو نکړي .

له لاسه یی ونیولم او راته یی وویل :

گوره یاره ته دي هم دا خپل کاغذی سد پرځای کړه یو څه به درنه جوړ شی ؛ دومره پر موږ بیوزلو مه غړمبیږه . ته گوره یو وار له موټره کښته شوم او ستاسو د کور شاته چي مي وکتل سمدستی مي یو ستر کشف وکړ ؛ که دي وویل څه کشف ، جایزه لری په سوچ کي ولویدم ، خو څه مي ونه موندل ، نو مي وپوښتل : پو نشوم ، څه کشف ؟ لکه چي د ډالرو کومه خزانه دي هلته د کشاقاتو په بیلر کي ترلاسه کړی ده که څنگه ؟ تاسو خو د کانونو له موندلو نه پرته بل کار نه لری .

– بیا پر احساساتو راغلی ؟ وایم چي دغه سړی ولی دومره پس پاتي دی ! ته گوره ... ته ښه ورته گوره ، له هیڅ شی نه خبر نه دی او هره ورځ پر موږ ملنډي وهي ... ورور جانه ! زر ورشه یوه جوړه نوي سترگي دړواخله ، د دغو به نمره بدله شوی وي ؛ ولي مو دومره څورووی :

زه وریاندي په قار شوم .

مړدي کړم سړیه ! وایه چي څه سوی دی ؟ ... ښه به وایی که له همغه «کرونا» څخه دي هیڅکله راکښته سوی نه وای ؛ په همغه کي تللای راتللای ، په همغه کي دي خوړلای ، په همغه کي دي هرڅه کولای ، خو خپل دغه سپیره مخ دي نه وای راښکاره کړی ؟

– ولی دومره سور و شین کیږي ؟ یوه پوښتنه مي درنه وکړه او ته دومره را باندي وخوټیدلی ؟

... گوره ، موټر موټر پریږده ، هغه مي د تجارتخاني په مخ کي درولی دی ، یو څه عوارض یي لرل ، پوښتنه دا ده چي سیدجمال الدین افغانی دي لیدلی دی که نه ؟

زه هك پك پاتي شوم چي دا څه ډول پوښتنه ده ؟ سیدجمال الدین افغانی گوره او ما گوره . هغه بیچاره کله مړ شوی دی او دي راته څه وایی . زما غور نیکه لا په هغه وخت کي چي سید ژوندی و ، ماشوم و ! ... نو مي رډ رډ ورته وکتل او تپوس مي تري وکړ : هلکه ! یو څه خو به درباندي شوی وی او موږ نه

یو خبر ؛ رښتیا وایه ! ډیر خو دې نه دي وهلی !؟

په قاه قاه یې وخندل او ویې ویل : که ما وهلی وی ، نو داسې یې وګڼه چې دې ټولو خلکو ، دغو ټولو لارویو او ګاونډیو هم وهلی دی او یوازې جنابعالی په خود یاست !

نو څه ؟!

چې نه یې مني راځه چې دروېې ښیم .

همغسې چې له لاسه یې نیولی وم له هغې لنډې نرۍ لارې نه یې زموږ د کور شاته بوتلم .

هلته د کشافاتو د بیلر څنګ ته یوه زړه ناولې ټوک ټوک بړستنه پرته او په شکیدلو خیرنو کالو کې د پاخه عمر او منځوی ونې خاوند یو سړی چې ګردۍ ګڼه توره ږیره یې درلوده او تار تار سپین پکې له ورایه لیدل کیدل ، په یوه زوړ خیرن بالښت باندې یې څنګ لګولی و ، یبلې پښې یې اوږدې کړې و . . . پښو ګوتې او پونډې یې چاو دي وی . له خیرې پانځې نه یې د ورنونو او تر زنګنو لاندې پوټکي ښه سپین مالومیدی . شلند او سرتمن و ، خو یو څه د بجلکو له پاس نه را کښته دومره خیرن او ککړ و چې له لیدو نه به یې زړه دې بد سو .

سر یې کښته و او د پرانیستې کتابچې په نیمه سپینه پاڼه کې یې په خود کاره قلم یو څه لیکل . هیڅ چاته یې پام نه و ، په همغه خپل جهان کې ډوب و ، یو دوه نفره نور هم چې له پیاده روه تیریدل زموږ په لیدو سره د سیل لپاره ودریدل .

زه نه پوهیدم څه ووایم همغسې په خپلو چرتونو کې لاهو وم او هغه ، شیبه وروسته ، سر راپورته کړ او موږ ته یې داسې وکتل چې ګنې موږ نه یو او زموږ له ورایه بل چا ته ګوري .

بې له دې چې په ځان پوه سم مخ مې واړاوه او شاته مې وکتل ، هلته هیڅ څوک نه و ، وګړی ، موټرونه او بایسکلونه تیریدل او څرګنده نه وه چې چا د ده پام ځان ته راکښلی دی .

علي ګل په چوپه خوله زما لاس راکښیکاره ، مخ مې وروا‌ړاوه او په سترګو کې یې ځیر سوم . « پاکه ربه ! دا څه دي چې وینم یې ، همغه دي پخپله سید دی . ما خو یې عکسونه لیدلي وو او د ده په هکله مې ډیر څه اوریدلي او لوستي وو ... پخپله سیدجمال الدین دی ... ښې ته یې وګوره ، جولۍ ته یې ... ګردي مخ ، ګڼه خو ګردۍ او لنډه ږیره ... سترګي ، هوکې ، دا خو همغه اورنۍ سترګي دي ... ته ښه ځیر سه ، څوک ورته کتلای نشی ، چا دا خبره کړې وه ؟

... هیر مې دی ... او د سید په سترګو کې دومره اغیزه وه ؛ چې هیچا یې د لیدو وس نه درلود ... دا خو همغه جذبه ده ؛ همغه له افسانې او اسرارو ډکه ورانګه چې د سید له سترګو به را وتله او د لیدونکو د سترګو له لورې به د هغه د وجود ژورو ته لاره موندله او هغه به یې د سترګو په رپ کې بیخوده کاوه ... که دا خبره رښتیاوې نو ...

په حیرانتیا مې د علي ګل خواته وکتل او ده راته سر وښوراوه . ما ورو په غوږ کې ورته وویل : زه چې یې ګورم پخپله همغه دی ، خو د سید هډوکی لا خاورې سوی دی . نو د دلته له کومه سو ؟!

– ما خو درته وویل . او ما نه و لیدلی !

– څو ورځې کیږي چې دلته راغلی دی . د شپې او ورځې همدلته دی او د پیاده رو په څنډه کې په همدې زړه بړستن باندې ناسته ولاړه لری او پرې وزی . ما څو شپې مخکې ولید چ په همدې بړستن کې یې ځان را تاو کړی و ؛ درې – څلور سپیان هم ورته څیرمه پراته و او یوه خپل سر د ده په پښو باندې ایښی و ؛ داسې چې په ناز سره یې سر پر بالښت ایښی وی ؛ سپیان هم ویده وو .

وړم کال و ، هوکې ، له همغې ورځې نه موږ په خپلو منځو کې د سید نوم پرده کیښود ، او ماته دغه کار پیدا شو چې هره ورځ سهار یا بیګا د ده خبر واخلم .

د سید نوم هیچا ته نه و څرګند ، ښایې نورو به هم همداسې له ځانه نومونه پرې ایښې وو . هرو مرو به همداسې و ، خو ماته همغسې چې په لومړی ځل تر سترګو سو ، دې کټ مټ سیدجمال الدین افغانی و .

ټوکه نه درته کومه ، پخپله سید و ، ښایې له هغه جهانه به راغلی و او غوښتل یې چې ځان زموږ به کرو وو باندې پوه کړې او ووینی چې د ده هیلې او سپارښتونه څومره ترسره شوی دی او څومره یې پاتې دی ، او وګورې چې تر ده وروسته دلته څوک دی او څه پیښیږي .

خو ده هم د خپل کار لپاره عجبه زمانه خوښه کړې وه ، دلته جنګ ، هلته جګړه ، دلته اور ، هلته ورانی ، دلته کرکه ، هلته دروغ ، دلته ناتېک ، هلته غولونه ، د دې پړاو اتکل یې هم نشوای کولای . زه داسې انګیرم ، خو همغه د ده د زمانې وخت چې په تاریخونو کې یې لولو له دې زمانې نه څه توپیر درلود ؟

ده به له ځانه سره ویلی وی چي دومره توپیر خو پکي نه وینم .
د ده په لاس کي به تل قلم او کاغذ و او څه به یی پري لیکل یا
به د خپل ټاټوبي پر شاوخوا گرځیده راگرځیده او له ځان سره به
یي څه ویل ، کله نا کله به د ده د خبرو ځرك را ولگید او پوه به
شوم چي وعظ کوی ؛ لکه هغه ستر مولوی صاحب چي منبر ته
خیژي او د دنیا او آخرت په باب لمونځ کوونکو ته مسلي وایی ،
له یاده به یی وینا کوله او ځیني وختونه به یی خپله زړه کتابچه
پرانیستی وه او د هغي له مخي به یی لنډي خبري کولي او هغه
گنو وگړو په لور چي ما به نه لیدل یا لیدلای می نشوای سي لاس
به یی ښوراوه او په نښتو گوتو به یی سمه لاره ورښودله «ښه
کوئ ، بد مه کوئ! رښتیا وایاست ، درواغ مه وایاست ! ... ظلم
مه کوئ ، رحم وکړئ ، تیری مه کوئ ، له خدایه (ج) څخه
وبیریږئ ، له دوزخه وبیریږئ! دغه دنیا نابوده ده ، پایښت نه
لري ، مه پري غولیږئ! ...
ای مسلمانانو ! سره یو شئ ، گنې ورك کیږئ ! ...»

خو بي له یو څو ماشومانو چي راز راز پوښتني ورسره دي ،
څوك نه دریدل چي د سید وعظونه واوري . دي به همداسي په
خپلو ویناوو لگیاو او لاروی به په گړندی توگه تیریدل راتیریدل
او داسي جوتیده چي ټول کاروانه په ټپه ولاړ دی اوکه دوی پسي
ونه گرځي او راسي د ده خبرو ته غوږ کیږدي ژوند به هم په ټپه
ودریږي ، یا د ده خبري دومره پورته ساده بریښیدلی او ورسره
روږدي سوی وي چي یوازي د کلمو لړی وی او مانا تري ورکه وه
ده هم هغو ته پام نه ساته او حافظ غوندي یی خپله وظیفه چي
دعا کول و ؛ ترسره کوله او د خپلو خبرو پاي ته منونکی لری به
بي د ټولو لارویو ترشا ، آن د هغو تر کور او کهاله پوري لیږدوله
او پخپله به له همغه یوه ټکی ځای څخه نه ښوریده یا د چا خبره
خپل یاسین به یی تیزاوه .

ځیني وختونه به یی یو نیم شعرونه هم له ځانه سره زمزمه کول .
یوه ورځ یو ټوپك والا له همدي املة ډیر پري وخندل او خپل وسله
وال آشنایی ته یي چي توري کړی سترگي او اوږدي څوني کړی
څنې یی درلودي ؛ په زوره چیغه کړه :
- گدا ! اُ گدا ! ... راشه دلته وگوره چي لیونی هم شاعر شوی
دی . هغه چي راغی په خندا خندا یی ورته وویل :
- ته صبر وکه ؛ دی خو څه کوی ټول لیونیان به شاعران شی .
او دواړو دومره په زوره وخندل او پورته پورته وغورځیدل چي له
سترگو یی اوښکي وبهیدلی او څه نه و پاتي چي توپکونه یی له
لاسه خطا سی او د کثافاتو په بیلر کي ولویږي ، خو هوښیاری
یی وکړه و لاړل .

سید چوپ و او هغوی ته یی نه کتل د شعر ویلو نه یی هم
ډډه کړی وه . ده ، هیڅا ته د ډوډۍ او پیسو دغوښتلو لپاره
لاس نه غځاوه . چا به چي څه ورکول همغلته به یی د برستن
پرځنډه ورته کیښودل او دا چي ده به واخیستل یا به وانخیستل
، بل چا به واخیستل یا ده به پخپله بل چاته ورکړل ، یو خدای
خبر و خو ما څو واره ، لږ وړاندي د یوه رستوران دوره ترڅنگه
ولیدی چي په غاب کي به یی ډوډۍ ورته ایښی وه او خوړل به
یی ، یوازي همغه رستوران ته به تی او هلته به ده ته مړی
ورکول کیدله ، خو د بل چا د کور یا د هټۍ په وره کي بی
هیڅکله ونه لید .

څه پوهیږو چي سید منی او ژمی څنگه تیر کړ . ماچي به هلته
په پیاده رو کي لیده ؛ داسي راته ایسیده چي نه په ساړه وو
پوهیږي او نه په کنگلو ، نه باران پري اغیزه لری او نه واوره او
د ده روغ او جوړ سرت د کلکو پولادو په شان دی چي هیڅ بلا
بی نه وهی ، گاونډیو به ویل چي «خدای پخپله د خپلو خاصو
بندگانو ساتنه او پرده کوی ، که د ده پرځای موږ وای ، ساه به
مو له یخنۍ نه د وخته ختلی وای !»

په پسرلی کي یوه ورځ سید ورك سو . زوړکی یی همغلته په
پیاده رو کي د لارویو تر پښو لاندي غوړیدلی و او د شپي او
ورځي به همغه آشنا سپیان پري ناست یا پراته و ، دي څو
ورځي نه لیدل کیده او ما گومان کاوه چي کومي بلي خواته به
تللی وی . د هغه برستن مي د دیوالة اړخ ته ټوله کړه او دري
ورځي هلته ورنغلم ، بله ورځ مازیگر له لاري تیریدم ، کتل مي
چي سید پر لوڅه ځمکه ناست دی خپلو زوړکو ته یی ډډه لگولی
ده ؛ کتابچه یی اړخ ته پرته ده یو ناڅرگند تکی ته گوري او
چرت وهی . مخ یی پړسیدلی وو او په تندی ، لاسونو او پښو
باندي یی په وچو سوو وینو ککړو ، ټپونه لیدل کیدل ، ورغلم
پوښتنه مي تري وکړه : څه در سوی دی ، ولي داسي ژوبل شوی
یی ؟ ده ، ځواب رانه کړ او همغسي په خپلو اندیښنو کي ورك
پاتی سو . ولاړم د رستوران والا څخه مي وپوښتل - هغه
پیژندلم چي له سید سره زما کومه ځانگړی مینه ده . ویی ویل :
چا په گیر ورکړی و چي دی هوښیار دی خو ځان یی په ټگماری

اچولی دی ، ښایي جاسوس به وی ، نو ببولی ؟

هو نو ! تا خو ولیدي !

یوه ورځ زموږ په سیمه کي ډیره سخته جګړه ونښته . هلته خو شخصی او دولتی ځایونه وو چي وسله والي ډلي پکي لویدلي وی ؛ هره ډله په یو چا پوري تړل وه ، خو موږ چي د هغو د غړو جولو ، اوږدو ږیرو ، ببرو سرونو ، اوږدو کمیسونو او لنډو بدوهلو پایڅو ته کتل یا د هغوی کتار وزمي اوسپکي درني وسلي مو لیدلی که د خپلو پوستو په دروازو یا بامونو نه واي ، نه مو شوای بیلولای چي څوك او په چا پوري تړلی دی . دا ځکه چي د دوی دغه ډول څیري مو پخوا نه وی لیدلی او کله چي ښار ته ننوتل د دي پرځای چي په باکونو او قطعاتو کي تم شی ؛ په ښار کي خواره واره شول او پر ټولو دولتی او غیر دولتی تشو ځایونو یی داسي قبضه ولګوله لکه چي د ډیر پخوا نه د دوی خپل شته وو او بیرته لاس ته ورغلل . دوی هڅه کوله چي خلك له ځانه وویروی او پري نږدی چي د کوم څه په هکله اعتراض یا ورنه پوښتنه وکړي . په دي وروستیو وختونو کي په کي ګنګوسه وه چي غلاوي ډیري شوی او سړی تښتوني هم راپیل شویدی . ویره ورځ په ورځ زیاتیده او خلکو به یو بل ته په پټه ویل چي دغه ټول د نه مسولو وسلوالو کسانو او پوستو کارونه دی . او ویل کیدل به چي غواړي دغسي پوستي له ښاره لری کړی .

زموږ په سیمه کي د څو پوستو د بیوسلي کولو لپاره نښته شویده او له هره پلوه داسي ډزی کیدلي چي تا به ویل سمه محاربه ده ، غلیمانو پر وطن یرغل راوړی او ملی مجاهدین دي، چي ټترونه یی د هغوی د مردکو په وړاندي سپر کړی دی او د راننوتلو مخه یی نیولیده . خو ، داسي نه و ، یوي وسله والي ډلي له بلي سره د ځانګړو حسابونو تصفیه کوله ، ګولۍ بی پر ښار او د سیمي او چاپیریال پر اوسیدونکو اوریدل او چا د سر سوررولو سیك په ځان کي نه لیده . واړه او زاړه ، ښځي او نارینه په زیرخانو او غارو کي پټ وو او لاري کوڅي له وګړو نه تشي وي وروسته مو واوریدل چي سید د جګړي او نښتي په ترځ کي یوازنی څوك و چي پورته او کښته یی منډي وهلي ، د دي پوستي پر خوا به یی مخه کړه مخغستل به یی او ناري به یی وهلی

«بس کړئ ، د خدای لپاره بس کړئ . یو بل ولی وژنی ؟

بیا به یی د بلي پوستي خواته مخ واړاوه ، لاسونه به یی د عاجزی او غوښتني په نښه ږپول او ناري به یی وهلی :

- مه کوئ ، د خدای لپاره مه کوئ ، بس دی ، خلك مه وژنئ آخر ، ټول تباه شول ... بس دئ نو ، بس دئ نو !

چاپي خبرو ته غوږ نه نیوه او هرڅه چي بی چیغي وهلی :

- مسلمانانو ! جګړه بس کړئ ، بس کړئ .

ګټه یي نه درلوده . ږغ یی د وسلو په درزهارو او د مرمیو په چونهارو کي ورکیده او هغو د سیمي اوسیدونکو چي د کړکیو له سوریو یا د دیوالونو له پناه ځایونو څخه په سره اور کي لیدلی و ؛ ویل یی چي زړه مو سخت ریږدیده او ویره مو دا وه چي کومه تصادفی ګولۍ پري رانه شی یا څوك بي په نښه نکړي او وي نه ولی ! خو فضل د خدای و ، جګړه پاي ته ورسیده او دي خوندی پاتي شو .

همدا یوه جګړه خو نه وه ، یو اخ و ډب خو نه و ، کله به د ښاري په نامه حق او ناحق په موږ ګولۍ اوریدلی او کله به د پوستو ترمنځ نښتی وی او یا به موږ د دوو څونورو او پایڅو بدوهلو د خپل منځی تودو ټکرونو د مرمیو له ویري له کوره نه شو را وتلای . بیا به هم سید همغلته یوازي د سړك پرغاړه پاتي و او دا ټول یی په سترګو لیدل ، ګواکي د همدي لپاره راغلی و ګواکي وروسته له هغومره کلونو نه چي د نړۍپر ټولو ناوړو او ناخوالو یی سترګي پټي کړی وی او ځان بی تري ګوښه کړی و بیا دغه ځمکنی هوس ورته پیدا شوی و چي راشي او یو ځل بیا دغه وګړی چي د همغو پخوانیو وګړو نه راریږیدلی دی او په همغو غرونو او رغونو کي میشته دی ، له نژدي نه ووینی او خپل پخوانی نیمګړی قضاوت پري بشپړ کړي .

موږ په خپله سیمه کي د ده له څیري سره بیخی عادی شوی و او دی داسي راته ایسیده ، چي همغلته په پیاده رو کي زیږیدلی او رالوی شویدی او زموږ د هري کورنۍ غړی دی .

سیدجمال الدین افغانی ... سید جمال الدین افغانی ، هو کي دي پخپله په تیره بیا زموږ د کورنۍډیر نژدي خپل و . دی زما ورور - سکه ورور ، تاسو ته خو څرګنده ده چي سکه ورور څومره پر سړی ګران وی ، او څه چي ده ته پیښیدل ؛ ماته له هره پلوه د اهمیت وړ وو ، او ما به له ځان سره ویل :

« که دغه خلك د ده په ژبه پوهیدلای او د ده له اړخه داسي ناګاره نه تیریدلای ؛ د ده ویناوي بی اوریدلی ، ملنډي یی پر نه وهلی او په دي کوښښ کي وای چي له زړو خبرو څخه یی یوه خبره ومنی او کار پري وکړي موږ به اوس څومره هوسا وای »

سره شریکه گذاره او ټول هغه څه چې د ې پرې پوهیدی او مور نه پرې پوهیدلو ؛ خوشې د لاسه تلل . دا یو راز و او مور له بده مرغه لاس برې پرې نشوای درلودلای .

ما ډیره هڅه وکړه چې یو څه ده ته ورنژدې سم او باور یې د ځان خواته را جلب کړم ؛ خو څه مې گوتو ته رانغلل ، علی گل چې به زما دغو هلو ځلو ته کتل ځینې وختونه به رابانديې په قار شو او گرم به کړم چې » وچ څاه ته شگې اچوی ! « او کله کله چې به ډیر خوشخویه و ، شین د خندا به را باندې تللی و او ټوکې به یې را پورې جوړولی ، زه د دې ټولو سره سره نامینده نشوم او خپل زیار مې پرې نښود . همدغه ځو ورځې مخ کې ، مازیگر و چې د منی د یخنی له کبله مې چپنه اغوستی وه او بازار ته راوتلی وم . سید ته هم ورغلم او پوښتنه مې تري وکړه .

باور وکړئ چې سم روغبړ یې راسره وکړ . هیڅ یې راته په سترگو کې نه کتل . خدای ورښتیا که یې کتلې وای له سترگو نه یې ویریدم ، په کتو کې یې داسې یوه جاذبه او اغیزه وه چې تا به ویل زما د ضمیر هرڅه ورته برالا دي . له سترگو څخه به یې د بریښنا په څیر یوه ځواکمنه څپه راووتله او د سترگو له لورې به دې د وجود سرترپایه وغځیده او رښکې به دې په بدن کې خوری شوې .

ده د لومړی ځل لپاره خپله کتابچه راکړه چې وېې لولم ، دا یوه نوی کتابچه وه او ما پخوا ورسره نه وه لیدلی . کتابچه مې پرانیستله ، بړغ یې را باندې وکړ : ویې لوله ! ومې کتل . پاڼې مې واړولې را واړولې ، خو کتابچه سپینه وه . پوښتنه مې وکړه : کوم ځای یې ولولم ، په دې کې خو څه نه دي لیکلی ؟ دی موسکی شو . ډیر خوشخویه مالومیدی . ویې ویل : هرڅه لیکل شوی دی ، هرڅه ، ښه ورته وگوره ! ښه ځیر سومه او داسې مې وانگیرله چې په سترگو مې څه شوی دی . هیڅ پاتې وم او څه مې ویلای نشوای . لاس یې را اوږد کړ او په داسې حال کې چې لارښوونه یې کوله ؛ داسې یې ولوله ! وگوره هرڅه پکې شته ... کتابچه یې را نه واخیستله او په پاڼو کې یې ډوب شو . نور یې خوله هم خلاصه نکړه او داسې راته ورښیدې چې د کتابچې په سپینو مخونو کې نه کښلی رازونه لولي ، او دا هغه اسرار دی چې زما سد نه پرې رسیږي . دغه هیله مې له دې کتو څخه ترلاسه کړه چې په راتلونکې کې به د ځوابونو کلی ورنه ومومم . هغه شپه ډیره ښه راباندې تیره شوه . د باندې تکان وو ، خو ما فکر کاوه چې بیا به د کومې ښادی له امله وی او څومره دا ښادی ډیری شویدی .

سهار وختی علی گل د کور دروازه را وټکوله او په داسې حال کې چې رنگ یې الوتی و او ساه یې بنده بنده کیدله ؛ راته ویې ویل : - هغه کوماندان پیژنې !؟ هغه کوماندان ...

- کوم کوماندان ؟ کوماندان خو ډیر دی . سمه خبره وکړه ! څه درباندې شویدی ؟ ولی دومره ریږدی ؟ راځه را ننوزه ، دمه دې تازه کړه بیایې راته ووایه ، ودې ویرولم ! په کوټه کې چې کښینستلو د پیښې بیان یې داسې راته وکړ : « هغه د کلوپ د پوستې کوماندان څه دی ، همغه ځوان دربښیم چې ټول په خبر دی د کلوپ مالونه یې لوټ کړل آن په دیوالو باندې ځوړندو د فرهنگی - ادبی څیرو په انځورونو باندې یې هم ضربه کړه او هر یوه ته یې ښکنځاوې کولی ؟! ...

- ښه ، ښه هغه خو پیژنم چې ټولو ته بد ورد وایی او هره ورځ له یو چا سره نښتې وی ، سیمه ټوله ورنه په عذابه ده ، خو لکه چې غټ مربې لری او مربا خوری ، د چا شکایت هم نه اوریده کیږي . ښه ، ده ، بیا څه گلان کرلی دی ؟

- وایې برایی ماخوستن ، همغه گړی چې دزی وی د خپلې پوستې له څو تنو وسله والو سره سید ته ورغلی و او ورته ویلی یی و ؛ چې سیمه دې خوشی کړی .

- کوم سید ؟

- همغه زموږ خپل سید - سیدجمال الدین افغانی ، ته هم لکه چې بیا په سد نه یی !؟

زه ډیر وارخطا شوم او پوښتنه مې وکړه : ښه ، ښه ! د هغه بیچاره خو همدغه ځای دی . همدغه کور دی ، چیرته لاړ سی ؟ دی خو په دې خبرو نه پوهیږي ؟

د علی گل په ستونی کې خبره غوټه شوه او د چیغې په حال کې یې وویل : - زموږ سید یې وواژه ... هغه نامسلمانه ظالم زموږ په بیوزله سید د ماشینگنی ضربه وکړه او هغه یې وواژه ... علی گل خپل مخ د لاسونو په ورغوو کې رانه پټ کړ ، او ما ویل چې بریښنا نیولی یم . دواړه لاسونه مې ارخ ته ولویدل ، اندامونو مې کار پرینښود او دومره مې ترې وپوښتل : اوس هغه چیرته دی ؟ ده ، په سلگو سلگو ځواب راکړ : هغه دی ، هلته په پیاده رو کې په وینو لیت - پیت پروت دی ، خلك پر راټول دی .

**پای -- کابل ۷۳ ۱۳**

# یو افغان اتل ملا عبدالحق "هراتی"

دبسم الله افغان مل مومند ژباړه

ډیر کلونه مخکې مې د ډهلي د ماسنامه "حقیقت" چې په اردو ژبه خپریږي ګڼه کې دروانې
پېړۍ د نومیالي تاریخ پوه پروفیسور دسي له خولې دغه مطلب لوستی وو چې " د تاریخ قضاوت تر
ټولو قضاوتونو لوړ او ارزښتمند دی اوس چې شایسته زیات کلونه د هغه وخت څخه تیر سویدي نو د استاد
تاییبي په بحث حبره مې عقیده نوره هم ټینګه سوې او هغه خبره د یوه انکار ناپذیره حقیقت په توګه منلی ده.
د همدې حقیقت له مخې کې د افغانستان سره د ایران د زړې او تل پاتې دښمنۍ یو تاریخي ثبوت د تاریخ د
دغه ځلاند لمر له خوا د قندهار د درنې او باارزښته خپروني د درنو لوستونکو ته په ډیره مینه وړاندې کوم ځکــه دغه
تاریخي سند چې په ۱۸۳۷ میلادي یعنې د نن څخه ۱۶۱ کاله اګاهو پوري اړه لري د دغه حقیقت څرګندوی دی چې په
... هر ډول کسي طبقې، هري شاهي کورنۍ که صفویان وه که افشاریان، قاجاریان وه او که پهلویان ټوله د افغـــان
... کسې. عداوت او دښمنۍ چال چلند کړی او پدې لاره کې د روسي تزاریانو او شوروي کمونیستانو نه هـــم
... تللي او د افغانانو په معنوی او مادي شتمنی باندي دعوه ګیر پاتې سویدي په ۱۸۳۰ میلادي کې هـــرات چـــی د
افغانستان د خاوري یوه برخه وه د پښتون یارمحمد خان "الکوزي" له خوا اداره کیدی که څه هم ظاهرا پاچاه پښتـــون
شهزاده کامران وو په همدې وخت کې ۱۸۳۷ ایراني پاچا محمد شاه قاجار د روسانو په کومک او لارښوونه په هـــرات
یرغل وکړ او هغه ښار یې داسي سخت محاصره او کلابند کی چې یارمحمد خان الکوزي او ملګرو یې تصور هم نســو
کولای. دې کلابندۍ څه نا څه ۱۲ میاشتي وخت ونیوی لیکن ایراني پاچا د ښار په نیولو بریالی نسو، ایراني واکمنو دغه
یقین درلود چې ایراني خواکونه به کله هم په افغاني جنګیالیو بری ونه مومي تر څو پوري چې ځیني نور افغانان دخپل ځان
ملګري نکړي او افغان د افغان سره ونه جنګوي دغه خطرناک پلان ډیر ژر د عمل په ډګر کې پلی سو او محمدشاه قاجار
د کندهار محمدزي سرداران لکه سردار علم خان د سردار کهندل خان زوی او داسي نور پخپله ګټه او د پښتنو په ضد د
هرات د جګړې ډګر ته ولیږل او افغان یې د افغان ګریوان نیولو ته وهڅول ځکه د هرات کلا بندي نوره هم سخته ســوه
او هره ورځ د هرات پر ښار او د خلکو او اوسیدونکو پر سیمو باندي په سوونو د توپونو ګولۍ لګیدلې. ښار او د هغـــې
پوري اړونده شاوخوا سیمې تباه او برباد سوې په ښار کې ډیره سخته قحطي راغله واړه ماشومان، د زړو بوډاګانو او سپین
سرو سره یو ځای د مرګ د حالت سره مخامخ سول مګر هیڅا هم ایراني خواکونو ته د تسلیم کیدلو خیال نه درلـــود د
هرات د کلابندۍ د ماتولو دپاره د کندهار څخه زر تنه د داوطلبانو په توګه د هرات په لور وخوځیدل په همـــدې ډول د
هزاره او ازبکو او حتی شعیه قومونو ډلې ډلې د هرات د جګړې ډګر ته د ایراني خواکونو سره د مقابلې دپاره روان ســول
او د ایراني پاچاه خلاف یې بیرغونه پورته کړل.

ایراني خواکونو د کندهارې جنګیالیو مخه ونیول چې پدې کار کې یو شمیر خرڅو سوو افغانې ډلو چې محکــــې یـــې یادونه وسوه د ایراني خواکونو سره مرسته وکړه او که نه یوازې ایراني قوتونو هغه وس نه درلود چې افغاني سرتیرو ته دې ماته ورکړي. د هیواد مورخ ښاغلی غبار لیکي " د محمد شاه قاجار په یوځ کې دغه اروپایي قوماندانان شامل وه لکه پـــــه ایران کې د روس ده سفارت د انجینری افسر لفتنت کرنیل بلارم برګ، روسی یوځي جنرال بــــرو فســــکین او کرنیــــل سیمستوف. سارجن سسون او یو تن پولنډی بروسکس همدوی د ایراني یوځ قوماندې په لاس کې درلوده او تــــوپونـــه د همــــــــــــدوی پــــــــــــــــه امـــــــــــــــر ویشـــــــــــــــل کیـــــــــــــــدل".

افغانستان در مسیر تاریخ /۴۰۴مخ.

لیکن د نن د هرات په ښار کې د جنګیالیو افغانانو پوځي اوملکي اداره د وزیر یارمحمدخان الکوزي په لاس کــــې وه او شهزاده کامران خپل زیات اختیارات نوموړي ته ورکړي وه هغه یو زړ تنه کندهارې خوانان چې په داوطلب ډول د ایراني خواکونو سره د مقابلې دپاره ده هرات په لور خوځیدلي وه ټول د نیول کیدو وروسته د ایراني پاچا په حکم ووژل ســــول او د سرونو څخه یې "کله منار" جوړ سو مګر د هرات د ښار دروازې د پخوا په شان د ایراني یرغلګرو پر مخ تړلې پاتې وې او د ایراني پوځ اروپایي قوماندانان هم په دې نه وه بریالي سوي چې د افغاني جنګیالیو سره په زور ازمایلو کې بــــــر راسې د ایران پاچاه محمدشاه قاجار له دې حقیقت څخه هم خبر سوی وو چې د افغانستان هزاره – ازبک او شیعه قومونه هم د ایراني یوغلګرو سره د مقابلې دپاره د جګړې د ډګر په لور خوځیدلي او د کلابند سوو وروڼو په ننګ درېــــدلي دي چې دې خبر د ایران د پاچاه ماغزه دومره کمزوري کړه چې نور یې د افغاني اسیرانو په ژوند هم رحم نه کاوه او ټول یــې له تیغه تیرول د قار او غوسې دلاسه یې غاښونه چیچل او د اعصابو درد یې احساسوه د لیونتوب نښانې یې په سترګو کــې ښکاریدلې او حیران وو چې څنګه دهغه پوځونو او د توپونو ګولی د هرات د ښار فتح کیدل نه اسانوي او د کلابند سوو افغانانو روحیه نه خرابیږي او مقاومت یې پای ته نه رسیږي کلابند افغاني خواکونه مشران او کشران یې ولې تسلیم کیدل نه مني او د قحطی.لوږې. تندې او بربادی سره سرد هغه شان جګړه کوي چې تصور یې نه کیږي او نه د جګړې څخــــه ستومانه کیږي. وایې چې پدې جګړه کې یو تن افغان هزاره قوماندان شیر محمد د ایراني پوځونو په ضد یو حمله کـــــې شپږ سوه اسونه د ایراني رسالې څخه په میړانه بوتلل چې په دې کار سره ایراني واکمن یو خل بیا ددې حقیقت خبره سه روښانه ولیدله چې هزاره ګان که څه هم شیعه مذهبه دي خو د زړه له کومې افغانان دي او افغاني هویت لري مذهب نشي کولای هزاره ایرانیان ثابت کړي او یا هغوی ته ایراني هویت ورکړي لکه چې وړاندې وویل سول د ایرانیانو له خــــوا د هرات د کلابندی یو کال دوام وکړ او د هر ډول ستونزو او کړاوونو او مصیبتونو سره ایرانیان بریالي نسول چې هــــرات فتح او هغه د ایران د خاورې یوه برخه وګرځي

په هرات کې افغانانو د خپلې تاریخي میړانې ثبوت ورکړ بیلو بیلو افغاني قومونو او قبایلو خپل یووالی ټینګ وســــاته او د مقاومت او سرښندنې په همدې مرحله کې د هرات یو دیني عالم چې عبدالحق یې نوم وو د لمانځه نه وروسته منبر ته پورتـــه سو او دښار خلکو ته یې دغه خطاب وکړ" ایران زموږ د هیواد لوی دښمن دی او د خپلواکې او له هیواد څخـــه دفـــاع کول لوی جهاد دی" د ملا عبدالحق د جهاد دغه اعلان په جلد پاېو کې د مخکې نه لیکلی او ویشلي وو د ملا عبدالحـــق له خوا د جهاد دغه اعلان چې د ایران یرغلګرو په ضد شوی وو خلک داسې راویښ او بیدار کړل چې په ډیرو سیمو کې د قار او غوسې توفان راوپاراوه افغانانو د ایراني خواکونو سره د مقابلې دپاره غسلونه وکړل کفنونه یې په خان کــــړل او ملي بیرغونه یې اوچت کړل او لکه تندر د ایران پر پوځونو ور وغورځیدل" ایران دښمن دی ایران دښمن دی" شــــعار ده هرې خوا او هرې خولې څخه اوریدل کیدی او د مرګ دپاره هر چا خپله سینه سپر کړې وه ده مرحله وو سره د لــــــوی

احمدشاه بابا د تورو وهلو دوره یو وار بیا تازه سوه او د لوی بابا دغه رغ د هر ځنګیالي په غوږو کي انګازه سوه چي ویلي یې وو:

د رقیب د ژوند متاع به تار په تار کړم
چي په توره پښتانه کا ګوزارونه

ملا عبدالحق لکه شین زمری د افغاني مجاهدینو سره یو ځای د ښار دروازې پرانیستې او د ښار نه بهر پر پرتو ایراني خواکونو ورخوځېدل چي قومانده یې د روسي جنرالانو او اروپایي بوځي افسرانو په غاړه وه د دښمن ځواکونه د افغانانو د بوې ناڅاپي باتار سره مخامخ سول داسي باتار چي هغوی یې هیڅکله هم تصور نسو کولای او نه یې اوس باور راتلی چي ګویا هغه کلابند سوي وړي. تري او کاڼي وهلي افغانان دي دومره زړه ور او میړني سي چي په دوی یرغل وکړي او هر یو افغان ځان په مرګ حساب کړي ځکه چي په ایرانیانو کي دغسي کار کله نه وو سوی او هغوی ورسره بیخي نابلده او ناسنا وه هر سر تیر افغان چي په یوه کال کلابندي کي یې د ایراني ځواکونو دلاسه کړاوونه لیدلي او زغملي وه خپله توره او توپک د ایرانیانو پر سر حواله کول او ژوند یې ورڅخه اخیستی افغان جنګیالي په دې پوهېدل چي په دې مینځ کي بله لار نسته یا د ایراني سر وهل او یا د هغوی غلامي.

د ملا عبدالحق د منبر په سر دغه وینا چي‌س ایران زموږ د هیواد لوی دښمن دی د هر افغان په غوږونو کي انګازه سوی وه او هر افغان د ایراني یر غلګر مری نیولي وه د ایراني پوځ بهرني قوماندانان د ایراني ځواکونو سره یو ځای دیوه نالوړه وحي حالت سره مخامخ سوي او پوځي مورال یې خراب سوی وو هغوی نور دغه هیله دلاسه ورکړې وه چي د افغانانو سره د مقابله او مقاتلي به کوم بری تر لاسه کړي د ایران د پوځ پولیندی قوماندان پروسکي د یو شمیر ایراني قوماندانانو سره د افغاني جنګیالیو د یرغل په پیل کي ووژل سول او نورو د تیښتي لاره لټوله. افغان ملا عبدالحق د نورو ملګرو سره یو ځای په ایراني یرغلګرو باندي مرګوني ګوزارونه کول او په ملګرو یې رغ کاوه چي یو ایراني درنه ژوندی خلاص نسي د هرات په جګړه کي د افغانانو او ایرانیانو مقابله په عین حال کي یوه سیاسي جګړه او مقابله وه ځکه چي ایراني واکمنو په غلطه دغه دعوه کوله چي هرات د ایران د خاورې یوه برخه ده او په زور له ایران ځخه بیله سوې ده حو س ورته افغانانو دغه سند په لاس وکولو چي هرات یوه افغاني سیمه او د افغانانو تاریخي ټاټوبی دی او افغانانو د همغه هرات د ژغورلي دپاره د ایراني یرغلګرو سره جنګیږي د هراتي ملا عبدالحق ناره وه چي د منبر دپاسه یې ایران د افغانستان تاریخي دښمن اعلان کړ او د ایران بې بنسټه دعوه یې پوچه او باطله وګڼله.

دهرات په جګړه کي شعیه او سني، پښتون او تاجک، هزاره او ازبک په ګډه د محدشاه قاجار په ضد وجنګیدل او د هرات کلابندی ته یې خاتمه ورکړه او هم یې ایراني یرغلګر ځواکونه بیرته د ایران تر پولو پوري وځغلول افغانانو یو وار بیا د خپلي خاورې ازادی او د خاورې بشپړتیا خوندي وساتله او یرغلګر ایرانیان یې د تاریخي ماتې سره مخامخ کړل افغاني شعیه، هزاره، تاجکو او ازبکو په ۱۸۳۷ میلادي کي دغه ثبوت ورکړ چي دوی ایرانیان نه او په ایراني تبر پوري هیڅ اړه نلري بلکه ټول اصل افغانان او د افغان د ستر کهول غړي دي او ایران به هیڅکله هم په سیاسي نیرنګ او چل وفریب دوی ایرانیان نه کړي که څه هم ایران په وروستیو درې څلور لسیزو کي افغاني خوانانو ته د خپل پوهنتون ګڼ شمیر دوکتوراګاني ورکړې او د نورو امتیازاتو سره یې دیته وهڅول چي په افغاني ټولنه کي د ایران په ګټه کار ورکړي او په ځانګړې توګه د افغانستان د اکثریت قوم پښتنو په ضد دښمنانه تبلیغات پراخه کړي او په دغو تبلیغاتو "شفاهي او تحریري" سره د افغانستان نور واړه قومونه د پښتنو ځخه جلا او په بیل مورچل کي ودروي ایران په دې لاره کي

میلیاردونه پیسې ولګولې او حتی په ایران کې یې د شیعه مذهبو افغانانو دپاره په خپل لګښت او ملاتړ سیاسي ګوندونه او تنظیمونه جوړ او د خپلو موخو د سر ته رسولو دپاره افغانستان ته راولیږل ایراني لیکوال "سید هادي خسرو شاهي" "په نهضت های اسلامي افغانستان" تهران چاپ کتاب کې دغه موضوع په هر اړخیز ډول څیړلې او دغه حقیقت یې څرګند کړیدی چې د لسو څخه تر پنځه لسو تنظیمونو پورې چې ټول هزاره، شیعه تنظیمونه وه د افغانستان د جذب وحدت په ګوند کې مدغم او یو واحد نوموړی ګوند ور څخه جوړ سو. پدې ډول ایران د افغانستان دخلکو سره خپلې زړې دښمنی ته نوې جامه ورواغوستله او په نویو سیاسي چالا کیو سره یې د افغانانو د انتقام یا غچ اخیستني پلان د عمل په ډګر کې پیاده کړ.
ایران خپل تاریخي دریغ پټ ونه ساتی او په افغاني ټولنه کې یې د بې اتفاقي او تربګنی پیدا کولو هڅې ګړندی او د پخوا نه زیاتې په کار واچولې او د پښتنو سره یې د نورو افغاني ورونو جنګولو په پروګرام باندې د میلیاردونو پیسو لګولو منظوري ورکړه.

د طالبانو د اسلامي غورځنګ سره یې دښمني په دې کې خپل اوج ته ورسیده چې د هغوی په فکر ګویا دغه اسلامي غورځنګ په پښتنو پورې اړه لرې او همدوی په افغانستان کې د ایران د سیاسي موخو د ترسره کیدلو مخه نیسي ایران پدې لټه او هڅه کې دی چې په افغانستان کې د شیعه اقلیت څخه د دفاع په بې اساسه بهانه په افغانستان کې خپلې سیاسي ګټې د پردې لاندې وساتي او شیعه اقلیت د سني اکثریت یا پښتنو سره برابر حقوق ولري پداسې حال کې چې په شیعه ایران کې د سني اقلیت حقوق د تل لپاره تر پښو لاندې او پایمال دي او د ایران په حکومت کې د سني اقلیت ونډه په نشت حساب ده.
خو دایران حکومت هیر کړیدی چې د هرات په تاریخي جګړه کې افغاني شیعه ورونو د ایران د یرغلګر خواک په ضد وجنګیدل او ازبک او تاجک هم د پښتنو په خوا کې ولاړ وه په دغه تاریخي جګړه کې هزاره شیرمحمد قوماندان په ایراني پوځ داسې ګوزارونه وکړه چې شپږ سوه اسونه یې د ایرانیانو له رسالې څخه په زور راویستل او هم د هرات بیلا بیلو قومونو او مذهبي فرقو چې شیعه وو قزلباش او نور ټول یکې وو د افغانانو په نوم او د افغاني بیرغ لاندې د ایراني خواکونو مقابله وکړه او خپله افغاني میړانه او توره یې ښکاره کړه چې دا په تاریخ کې یوازې پیښه نده بلکه نورې ډیرې پیښې هم سویدې چې په هغو کې هزاره ګانو، ازبکانو او تاجکانو د خپل افغانیت ثبوت ورکړی او د ایراني او مغلي، انګریزي او روسي یرغلګرو په وړاندې یې د پښتنو سره یوځای د ګران هیواد افغانستان دفاع کړیده او که خدای (ج) کول بیا به یې هم وکړي

مونږ په تاریخ کې د ملا عبدالحق په خیر نور افغاني اتلان او میړني هم لرو چې د ایران د تاریخي ضرورت له مخې یې د یرغلګرو خلاف د جهاد بیرغونه اوچت کړي او ریږلي دي خلاصه دا چې ټولو افغاني قومونو په ګډه سوله یې افغانستان ساتلی دی خو د مذهب په نوم د ایراني واکمنو دعوی تل غلطي او بې بنسټه ثابتې سویدې ځکه شیعه ګان که په افغانستان کې دي نو افغانان دي که په پاکستان کې دي پاکستانیان دي او که په عراق کې دي عراقیان دي نه ایرانیان مګر ایران پدې باندې بیمه دا حق نلري چې د نورو خپلواکو هیوادونو په کورنیو چارو کې لاسوهنه او مداخله وکړي او پښې پلمه خپلې سیاسي ګټې خوندي وساتي
ایران باید تاریخي سبقونه هیڅکله له یاده ونه باسي او تیري تیروتنې بیا بیا تکرار نکړي او د پښتنو سره دښمني په مخې لرلو دښمني چې دوی په افغانستان کې د اکثریت قوم په توګه یو پیاوړی خواک جوړوي له هر پلوه یو ناسم او د عقل څخه لیرې کار ګڼل کیږي او نتیجه یې تل د هغه هیواد په زیان تمامه سویده پښتون که د اسیا ساهو او پیژندل سوی قام پاتې سویدی نو د سیمې د ورورولی پلوی هم دی او د هر تهدید او خطر سره د مقابلې ډیر سه توان لري دغه قوم د قضاوت له مخې د افغان ولس د ملاتړ مسؤول سوي چې افغاني ورونو قومونو ورسره په ورورۍ ژوند سبا کړیدی او افغانستان د ټولو قومونو ګډ کور دی چې د هر افغان پت او عزت په همدې کور کې خوندي او مصئون ساتل سویدی پدې کور کې به د ګوډګیو جوړولو اجازه هیچاه ته ورنکړې شي چې په همدې دلیل د ایران ګټه پدې کې ده چې دی کورته او ددې کور ټولو اوسیدونکو ته په ته په درنه سترګه وګوري!

# د پاړکیوالو یون د خپلواکی د شهیدانو تر انگړه

عبدالمجید (بابی)

د ۱۳۷۸ کال د زمری د میاشتی اته ویشتمی نیتی ته دری. څلور ورځی لا پاته وی چی د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د ریاست د شعر او ادب د څانگی د مشر ښاغلی عبدالقیوم (مینه وال) لخوا خبر راکره سو چی ددې روانی میاشتی اته ویشتمه نیته چی د گران هیواد د خپلواکی د اتیایمی کالیزی سره سمون خوری په (میوند) کی به ئی د یوی ادبی غوندی په ترځ کی چی په هغه کی به خاماخا مشاعره هم وی ولمانځو (انشاالله) ده وویل ستاسو څخه هم غوښتنه کوم چی د نورو لیکوالانو او شاعرانو په ډول کم چی زمونږ په پام کی دی پدی غونده کی گډون راسره وکرئ ما ورته وویل ښه خبره ده خو تلل مو څه ډول؟ او هلته مو د غونډی بهیر څه دول په پام کی نیولی دی؟ نو په خواب کی یی راته وویل دغوندی په برخه کی به پر هرڅه هم هلته خبره کوو خو د تللو مهال مو (۵) شنبه د زمری اته ویشتمه نیته د سهار (٦) بجی ټاکلی دی او ټوله په وگړنیز کتابتون کی راټولیږو او که خیر و د همدی ځایه به رهی کیږو.

هو ! د زمری اته ویشتمه د (۵) شنبی ورځ راورسیده د لمری سهار څخه می سترگی د گری وستنو ته وی او د (٦) بجو و رارسیدوته لیواله وم څو د میوند د ویاړلی جگری د شهیدانو ټاټوبی چی دوه دری ځله می نور هم مخکی لیدلی و یو ځل بیا د هغه په لیدلو سترگی رونی کرم او د بلی خوا خپله ادبی تنده د په پام کی نیول سوی ادبی غونډی په ترځ کی ماته کرم.

هغه و چی پر (٦) بجو د بامیزو په کوڅه کی د خپل پلرنی کوره را ووتلم او نیغ ونوی ښار ته ولاړم او دخوریی له کوره می خپل موټر رارهی کړ ما ویل که گډون کوونکی وروڼه دیرئ سوه دری. څلور کسه به زه راسره واخلم . د شهیدانو دڅوک سره نژدی د وگړنیز کتابتون ومخ ته می د سړک په غاړه موټر ودراوه زه کتابتون ته ورغلم د کتابتون په وره کی د دمینوال صاحب سره مخامخ سوم دده سره می روغبړ وکړ — بیامی د وروڼو د راتللو پوښتنه ځینی وکړه ده ویل څه کسان سره راغلی دی او ناست دی خو زه به درځخه ولاړسم څه سوداوی لرم دی خو ولاړ په کتابتون کی دننه ځینی وروڼه لکه ښاغلی ناتوان صاحب. ښاغلی پینزاند صاحب. ښاغلی رنځوریار صاحب. ښاغلی پټیال صاحب او ښاغلی عزیز احمد خان (عزیز) په خوږو ادبی خبرو اترو سره لگیا وه تر روغبړ وروسته یی زه هم دناستی ملگری سوم وروسته زه او ناتوان صاحب د کتابتون دشمالی اړخ په رپونو کی په اوډول سوو کتابونو باندی وگرځیدو او یو په

یوه یې سرلیکنو ته خیر شـو همدا مـــهال ګران ورونه (محمدیـــار صاحب) او هڅیـال صـاحب هـم راغله هغوی هم تود روغبـړ وکـړ او پـه کتـابتون کـې د ایـښودل سـوو چوکیو دپاسـه کښیناستل .

دمینه وال صاحب راکړه سوی (٦) بجـې اووه بجـې سوی اووه بجـې یې اووه نیمی بجې سـوی خومینـه وال صاحب لاد کارونو څخه نـه و وزګار سوی.

په همدغـه سوچونـو کـې وم چـې مینـــه وال صـــاحب څومـــــره وخندیدی؟ او ولې وخندیدی؟ کـه ګورم دکندهـار زیرمپـانې (مجلـې) مرســتیال ښاغلـــی محــب الله اسحاقی راځرګند سو تـر روغبـړ او پوښتنـې ګرویـــږنې وروســـته یې تینګار وکړ چې درځه ولاړسـو د اطلاعـاتو او کلتـور ریاسـت تـه – دلته که ورونه سره راغوند هم سـې هـم هلتـه راځي- مـاهم ورسـره ښه کړه او دواړه د ریاست د ودانۍ په لور رهی سـوو پـه لاره کـې مـا یـو ځوان پارکیوال نـوری (شیون) هـم دځانه سره رارهی کړ.

د اطلاعـاتو او کلتـور دریاسـت د ودانـی پـه وره کـې ددی ریاسـت دوو تنـو کـارکوونکو ښاغلــو ګل احمدخان او یو بل وروږ ښه راشه درشه وکړه او د چایو څښلـو بلنـه ئې راکړه د کـور ودانـی پـه ویلـو دد وی څخه راتیر سوو او د ریاست د ودانی په ختیځه برنده کـې د نـورو ورونو د راتللو او رارسیدلو په هیله کښیناستو دلته د راډیو افغانستان مخکنـی وینـدوی ښاغلی محمدهاشم نیازی چې اوس د کندهار دشریعت ږغ راډیو له څپـو نـه دده ښکلی ږغ اوریده کیږی هم راغلی او زموږ دناستی ملګری سـو اوښه ګری راسـره کښیناست پدی مهال کی د کندهار د شریعت ږغ راډیو مشر ښاغلی جهانګیروال صاحب هم را څرګند سو- روغبړ یی له نژدی وکړ - د پوښتنـی اوچـای څښلـو پیرزوینه یی هم وکړه. ویل (میوند) ته دخیره رهی یاست موږ ویل هو ده ته مـی وویل : تاسو ملګرئ نه راسره کوی؟ ویل یـا تاسو تـه ښه یـون غـوارم زمـوږ کارونه زیات دی جهانګیروال صاحب خو دخپلو ملګرو سره کارونو پسی ولاړ – او موږ بیا هم د نورو ورونو راتګ ته سترګی په لار پاته سوو هر ځل چـی بـه مـو ګری ته وکتل د غرمی رارسیدو ویـره بـه ورسره راپیداسوه (اسحاقي) ورور دوه خله تیلیفون وکړ خو (مینه وال) لا نه و وزګار سوی اونه تاکلی ځای تـه راغلـی و نورهم ښه ګړی تـیر سـو او څوک نسوه راڅرګند دا مـهال نیازی صـاحب او اسحاقي صاحب اړ سوه چی خپله پسی ولاړسی – موټر سایکل یی رهـی کړ او ترکتابتونه ورغله. څو دقیقی نـه وی تـیری بیرتـه راغلـه او زیـری یی راوړ چـی دوی سره راغوند سوی او اوس به راورسیږی ددوی خبره رښتیاسوه سمدستی پـه یوه سره مینی بس موټر کی د ادبی ملګرو زیاته برخه راغلـه ددوی دراتلـو سـره ښاغلی انجنیر عبدالله ګل (ریان) صاحب، داوری اخنذاده صاحب، ا د شریعت ږغ راډیـو اداری مدیر ښاغلـی حـاجیعبدالقدیر خـان هـم دخپلو کـوټو څخـه دریاست و انګړ ته راووتل ږغ سو ویل دخیره رهی کیږو موږ هم سره را ولاړ سـو انجنیر صاحب – نیـازی صـاحب ، اسحاقي صاحب او شیون صـاحب زمـا ملګري سوه او وسرک ته را ووتلو. مینه وال صـاحب لانـه و راغلـی . خـو مینـی بس موټر د ملګروڅخه ډک سو – دمخ په چوکـی کـی بـاعث صـاحب او داوری اخنذاده صاحب دموټر چلوونکی تر څنګ کښیناسته موټر ته دریاست د اړونـدو کارکوونکو لخوا پلاستیکی تغرونه او نور د دوډی پخولو او خوړلو لـوښی او نـور اړوند څیزونه ورپورته سوه . موټر وخوځید څو مینـه وال صـاحب هم دکتـابتون څخه راپورته کړی او مخ دمیوند پلور وخوځی د (۹ نیمو) بجـو شـاوخواوه چـی زموږ موټر هم ورو ـ ورو رهی سوو دنوی ښار دښکلو او زړه وړونکو کورونو څخـه چی خینی یی مخکی او خینـی یی اوس جوړیـده تـیر سـوو د ډنـډ لـه ډګر او د سرپوزی له سیمی څخه هم تیر سوو دلاری سمون زموږ پام واړاوه دا لاره مخکـی ډیره ورانه وه او د څه مودی راپدیخوا د امارتی اروندو چـارواکو لخـوا پـر هغـه باندی په بیړه سره دسمون چـاری روانـی دی . پردی ځای پسـله (۲۵) کلونـو

څخه بیا په سوکالی سره دموټرونو تګ او راتګ تر سره کیده په همداسی سو کاله توګه مو د (سرپوزی) د تیلو پخوانی ټانکونه . او د (پنجاو) زرغونه سیمه تر شاپریښودو (میرویس مینې) ته راورسیدو دلته هم ودانی جوړیدی او ځینی یې ځکی لا جوړی سوی او یا دجوړولو په درشل کی وی سر بیره پر دی دسړک په کیڼه خواکی یوی ښکلی نوی ودانی ځان ته سترګی وراړولی چې پر تندی یې لیکل سوی وه د (ناژو ان کلینګ) _ له دی ځخه هم تیر سوو او د ملی ستر لاربنود د دوری په لور دسړک ولوری ته پورته سوو او ورسره جوخت دملی لار ښود د دوری د پاسه ښکلی شنه ګنبده راڅرګنده سوه.

داسیمه د (کوکران) په نوم یادیږی چې د ښار څخه په (۱۰) کیلو متره [illegible] کې د (ارغنداو) د رود په غاړه پرته ده. او په دی سیمه کی د حاجی میرویس خان نیکه لخوا لویه جرګه هم رابلل سوی وه څو د پارسیانو د تیریو په وړاندی د ټبرونو مشران په ګډه یو ټاکونکی لاره خپله کړی میرویس خان نیکه هغه ملی پښتون مشر و چې په (۱۱۲۰) لیږدیز لمریز کال کی یې د خپلواکی جنډه او چته کړه او د هیواد دخپلواکی هود یې په داګه کړ.

پارسیان ددی ویاړلی میره دی هڅی لا وپارول او څو ځلی یې پراخی لښکر کښی وکړی ولی هر ځل یې ماتی په برخه سوه . د پښتون اولس دغه ستر لاربنود تر اته کاله مشرتوب وروسته په (۱۱۲۷) لیږدیز لمریز کال ددی نړی نه سترګی پټی کړی.

او دهمدغه کوکران په کلی کی خاوروته وسپارل سو د محمدنادرخان غازی د واکمنی په مهال په (۱۳۱۱) لیږدیز لمریز کال کی دتنظیم رئیس اروابناد وزیر محمد ګل خان مهمند په زیار او هڅه سره همدا اوسنی ګنبده د ملی لاربنود میرویس نیکه پر دوری باندی جوړه سوه مزار ته یې د پښتنو نر اوښځی . واړه او زاړه ورځی او دده دروح څخه فیض او مرسته غواړی.

موږ هم کله چې دده دښکلی ګنبدی په وړاندی تیریدو هغه ته مو دوعا وکړه او په همدی نژدی ورځوکی ددی ګنبدی د جوړویدنی او رنګ کیدنی په چارو چې په نژدی ورځو کی تر سره سوی وی ډیر خوښ سوو.

ددی ویاړلی ګنبدی څخه چې تیر سوو د ښار څخ دلویدیځ په لور (۱۵) کیلو متری کی‌سنځری ته دلوی کلی تر خولی پوری سړک ډیر ښه ترمیم سوی و _

ددی ځای څخه مخ په وړاندی د سړک د ورانی له امله په ټک کی څه کړاو و خو دا ډول لاره لنډه او وروسته یې بیا ښه والی وموند او دلاری دی ښه والی خو په موټر کی خبری هم راپورته کړی د زمری د اته ویشتمی نیټی دویاړلی ورځی په اړه انجنیر صاحب خبری پیل کړی او څه روښنایی یې ددی ورځی په پیښو واچوله . بیا ددی ورځی د په پام کی نیول سوی غونډی په اړه خبری وسوی.

څو په همدغو خبرو لګیاو چې د سکنجصار او حوض مدد له سیمو څخه هم یو په بل پسې واووښتو د غرمی د (۱۲) بجو څخه لا دګرې ستنی تیری وی چې د میوند ولسوالی و بازارته ورسیدو _

هلته مو دمندیګک دلوی مانده پرغاړه یو ملګری کښته کړ څو زموږ نورو ملګروته چې تر اوسه لانه وه رارسیدلی سترګی په لار اوسی. موږ نور پاته کسان د بازار له منځه تیر سوو او د بازار په وروستی غربی څنده کی مود تیلو دنوو جوړو سوو ځاهانو دنلکې څخه موټر ته تیل واچول او بیرته راوګرځیدو په بازارکی مو یخی اوبه وچښلی او د انجنیرصاحب هم دتناره څخه راوتی تودی ډودی ته زړه سو او هغه یې راواخیسته او بیرته د کښته سو ی ملګری ځای ته راغلو هلته مو څه وکتل خو ملګری مو نسوه څرګند وروسته دمیوند دزیارت په لور وخوځیدو دمیوند د زیارت لاره د منډ یګک دمانده په غاړه مخ د شمال په لور غځیدلی ده.

د

څه لار چې مو ووهله د لويې لارې وغرب ته د ميوند دجګړې د اتلې ملالۍ د ډورې جنډه راڅرګنده سوه. دموټر دانډيوالانو سره مو خبره وکړه خوښه پر دې سوه چې ور وبه ګرځو کوندې ترشا راروان ملګرې مو هم راورسيږې دسرک څخه لويديځ ولورته وګرځيدو او د يوه بهيدونکې کاريز پر څنډه د يوه کوچنې خړ ديواله په منځ کې ډورې ته ودريدو دا دملالې ميوندې ډورې ده کم چې دځو کلونو را پديخوا ددې په نوم نومول سوې او نر اوښځې او دشهيدانو وزيارت ته تلونکې کسان يوځل دې ته هم راګرځې. دا ځاى سامخکې هم ليدلى و يو سپيره قبر و څو اوس همدا د ختو ديوال پر راګرځيدلى او د ډورې څنډې يې د پتو په ډول سميټ سوى وى.

وايې همدا ملاله دننني ميوند او پخواني کشکنخود پر سيمه د يوه کوچې لور وه کله چې د (۱۸۸۰) زيږديز کال کې دجولاى دمياشتې په (۲۸) مه نيټه د پښتنو او فرنګيانو تر منځ د همدغه ميوند پر دښته جګړه ونښتله د جګړې لمرې ګړې داسې وه چې پښتنې خواکونو زيات خانې زيانونه وګالل نژدې و چې د داسې زيانونو بهير پسې اوږد سوى واى او په يوه لوى زيان اووښتې واى

پدغه مهال کې ملالې د يوې څنډې راڅرګنده سوه او په لوړ ږغ او ملي شهامت سره يې داسې وويل:-

که په ميوند کې شهيد نسوې + خدا يږو لا ليه بې ننګۍ‌ته دې ساتينه

ته په ميوند کې خان شهيد که+ زه به سور شال ستا په زيارت وغوړومه

پدغه لنډيو سره د مجاهدينو تن ته نوى سا ننوتله او پر دښمن يې مخ راوګرځاوه او په ډيره ميړانه وجنګيدل او دانګريزانو او يسرى لښکرو بولندوى (ريبولډر) د پښتنو په ګذارونو کې له اسه راولويد او نور دلښکرو سرغنه يې هم يو په بل پسې د تورو خواره سوه اوپدې ډول انګريزا ښکيلاکګرو سخته ماتې وخوړه.

دجګړې وروسته د جګړې د ډګر اتل دميوند زمرى سردارمحمد ايوب خان غازي پوښتنه وکړه چې دا نجلې څوک وه. خلکو ورته وويل دا دکشکنخود ديوه چوپان لور ده .

تولو د هغې د شهادت د ميل کيدو د پاره لاسونه پورته کړه . او خاورو ته يې وسپارله.

دملالې چار چاپيره دلته اوهلته نور شهيدان هم د پرخې دښتې دپاسه پراته دي. همهلته موږ هم وملالۍ‌ته لاسونه پورته او نيراوى (دوعاوى) مو ورته وکړى.

کله چې څنې رارهې کيدو د ميوند دشهيدانو د زيارت پرلاړ مو د خپل يون دملګرې دافغانستان د اسلامي امارت دويانډ او دکندهار د اطلاعاتو اوکلتور رياست د رئيس او تکړه پارکيوال ښاغلي ملاعبدالحي (مطمئن) سپين رنګې ګرندى موټر وليد چې د زيارت خواته مخ په وراندې رهې و. اوداسې څرګنديده چې موږ ته به يې پام نه وى اووښتى.

موږ هم لويې لارې ته راستانه سوه څه ګړې وروسته دميوند د کورونو په منځ کې راتير او په يوه نرې لار راغبرګ سو چې دلارې په ښى اړخ کې مو يوه ښکلې دپخو خښتو جوړه سوې ګنبده مخ ته راغله پوښتنه وسوه چې دا دچا زيارت دى ما وويل دا دخواجه حسن ميوندى زيارت دى دغه خواجه حسن ميوندى د لوى واکمن محمود غزنوى وزير و او په (شمس کفاته) سره نومول سوى و دده خپل نوم احمدبن حسن دى : دى د کوچنيوالي څخه د غزنوى واکمن سره لوى سوى و په خوى او بوى دواړه ښه سره پوهيدلى وه . او محمود ده ته دورور په نوم ويل.

هغه مهال چې په (۳۸۴) ليږديز لمريز کال کې محمود غزنوى دمنصور دزوى نوح لخوا د خراسان په حکومت وګمارل سو ميوندى يې منشي و .وروسته يې نورى دندى هم سرته ورسولې او بيايې تر (۴۱۶) ليږديز لمريز کال پورې وزير و دير تينګ هوډيې درلود. د چا تر اغيزې لاندې‌نه راتلي او په ربنتينولى کې

وتلـی سـری و . څکـه د پلازغـولی کینه لرونکو ورپسی لیځی ونغښتی او د واکمن کرکه یی ورته وپارولـه. دی یی د کاره گوښه او بند ته نـی واچاوه بیا د محمود د زوی مسعود په واکمنی کـــی دبنـده راووت او د بلخ وحکومت ته یی وټاکه خو څه زیات دوه کاله یی کار وکــړ او بیـا مـړ سـو مـړی یی زامنـو د هــرات څخه میونـد تـه راوړی. دمیونـد د دکر شهیدان دده پـــر زیـارت چـار چاپیره راګرځیـدلی دی. دی دیـوه بزرگواره پیر پـــه تـوګه منـل سـوی دی نـــر او ښځی یی د زیــــارت خوردې اخلی.

وایی چی غزنوی واکمن دده دلیـدو دپـاره یـوه ورځ میونـد تـــه راتلـــئ دخانه سره یی منلی وه کـــه رښتیـا میوندی لـوی سـړی وی مـا او زمـا لښکروته به داسـی خـوارډ راکـړی چی تراوسه مو نـــه وی خـوړلی نـو میوندی هغوی‌ته د شـیدوچـای پـه پسرلی کی دهوسـی دشـیدو څخـه ورُجـوړی کـړی خکـه نـــو واکمـــن دهغه کرامت ته سر تیټ کـړ. مـوږ هـــم ددی لـــوړ او نوموتـــی ســـړی زیارت وکړ دننـــه یی د زیـارت پـه ختیځه څنده کی د دبری پخوانی جوړسوی او لیکنـــه لرونکـی ورونـه (دروازی) او خپلـــــــــه د دوری دبرلیکونـــه خینــــی روغ او خینـــی توته توته پراتـه وهم دلیکنـو څخـه یی دمیوندی پیژند نه څرګندیده ددغو دبرو لیدنی څه خواشینی کړو خکه پـدی وروستیو کلونـو کـی پـه لـوی لاس هغـه د دوری او نـورو ارونـدو ځایونـو څخـه راکښل سوی او دلته کوته سوی وی. خو بیا هـم نیکمرغـی پـدی کـی وه چـی د دبرو ماتی توتی تر دیره ځایه خوندی او ځای پر ځای وی. که یو مهال نـه یـو مهال د اطلاعاتو او کلتور ریاست د اړوند ځانګی او یا کومی بلی ځانګی لخـوا د هغو وبنستیزه جوړیدوته زړه ښه کیدی کار به ورته اسانه وي .

کله چی مو د دوعا دود سرته ورساوه او د زیارت څخه راووتلو څه چی مـخ تـه ولاړو سمدستی دیوه اوبلن چمن سره مخ سو لدی نه هم ور تیرسو لـوړی او وچـی ته چی راختلو د زیارت له لوری (مطمینن) صاحب او ورسره ملګری یی راغــبرګ سوی ود همدلته سره ودریدو پوښتنه مو وکړه سره پوه موکړه چی نور ملـــګری مـو تراوسه لاندی رارسیدلی گوندی وی چی اوس نو راسی.

دوی ویل موږ هم بیرته زیارت ته درځو یوځل به دغه زیارت وکړو داد چـادی؟ موږ ورته وویل داد خواجه حسن میوندی زیـارت دي. دوی همهغـه لورتـه رهـی سوه او موږ دمیوند دشهیدانو لوی زیارت تـــه راغلو. شـهیدانو تـه مـو پـه دوعـا لاسونه پورته کړه ددی شهیدانو د نومونو او کارنامو دساتنی دپاره د وزیر محمــد گل خان مومند لخوا جوړ سوی ښکلی او زړه کښونکی څلی ته ورتیر سوو دڅلی په لمن کـی جوړسـوی لـوی ځای تـه ورپورتـه سو هلتـه مـو دڅلـی پـه ښکلـی جوړښت باندی خبری وی چی (مطمینن صاحب) او ددوی ملګری هم راغلـه څه کړی مو د میوند دجګړی په شاوخواکی خبری وکړی. چی د اسـهال د منیـه وال صاحب او نورو ملګرو تر شا پاته موټر په دښت کی راڅرګند سو هغوی موټر څه په کراو کړی وه او موټر یی تخنیکی نمګرتیاوی درلودی. خـیر څه کړی وروسـته دوی هم ټول راورسیده تر روغبړ او پوښتنی وروســته دستی د غونـډی دپـاره پـه کډه سلا سره ځای وټاکل سو اوغوړه وبلل سوه چـــی دڅلـی تـر څنګ پـه نـوی جوړسوی مسجد کی سره کښینو څو ملګری سمدلاسه د خوړو په پخیدو لګیاسوه . او خینی نور بیا د میوند د شهیدانو تر څنګ دلته او هلته سره پنی سوه .

داشهیدان دمیوند په ســیمه کـی ښځ سـوی او میونـد دهغـه کلی نـوم دی چـی دکشکنخود د بازار څخه دشمال په لور د (۱۲) کیلو مترو پـــه واټن لـیری پـروت دی. میوند دپیښلیکـیزه اود زښت لـه مخـی نـه یـوازی د کندهـار بلکـی د ټول هیواد یوه نوموتی سیمه ده. دهمدغه پیښلیکیزه ارزښت لـه مخـی ولسـوالی چـی مخکی د کشکنخود په نوم یادیده دمیوند په نوم واوښته ددی ســیمی پیښلیکـیزه ارزښت پدی کی دی چی تردغه کلـی کښتـه دمیونـد پـه دښتـه کـی د (۱۸۸۰) زیږدیز کال دجولاي دمیاشتی په اته ویشتمه نیټه د پښتنو او انګریزانـو تـر منـځ

تینګه جګړه سوې ده دانګریزانو خواکونو شمیر (۱۳۰۰۰) تنو په شاوخواکې ښودل سوی چې ډیر زیات توپونه هم ورسره مله وه او سردارمحمد ایوب خان د (۱۲) زرو پلي او سواره پوځونو سره د هراته راخو ځیدلي و په لاره کې هر ځای ملي مجاهدین ورسره یوځای کیده او یوازې (۲۰) زره کسان په ګرشک کې ورسره یوځای سوی وه. دا دواړه ځوا کونه دمیوند په دښته کې سره مخامخ سو د انګریز لښکرو د مخکې څخه لاځایونه نیولي وه پښتني لښکرو د اړیّ له مخې په وچه دښته کې خواکونه ځای پر ځای کړه او سمدلاسه په پښتني لښکرو کې (۶) زره تنه تیارسوه څو ولښکر ته نږدې وچ کاریز کارکړي همغه و چې کاریز اوبه وکړي او دلښکرو اړتیا د اوبو له اړخه بشپړه سوه .

ددښمن قواوو تر (۶) ورځو پورې زړه نسوای کولای چې پر پښتني خواکونو برید وکړي. د ځای پر ځای کیدو په اوومه ورځ د جولای پر (۲۸) مه پښتني خواکونو برید پیل کړ – څو د دښمن توپونو په تینګه کولي اورولي او دپښتني خواکونو څخه یې ډیر شهیدان کړه تر غرمې پورې (۵۰۰) تنه شهیدان او (۸۵۰) تنه هم ټپیان سوه . پدې مهال کې نائب سالار

حفیظ الله خان دجګړې ډول واړاوه . او پرپښتني لښکرو یې د (پروت) ږغ وکړ- پروت یې پداسې مهال کې وکړ چې د ایوب خان سره څلور زره لښکر د بریښنا په ډول په درو لورو ځغستا پیل کړه او ددوی له ځغاستې څخه دوړه پورته سوه. انګریز خو سوچ وکړ چې پښتانه ګواکې مات سوه خو ځغستونکو پښتنو ځواکونو په یوه لویه کړۍ باندې راوګرځیده او پر انګریزی ځواکونو راوڅرخیده او د راګرځیدو کړۍ یې ګړی په ګړی پر تنګوله . دوی د شاله خوا او هغو خواکونو چې پروت یې کړی و دمخ له خوا پر انګریز مرګوني ګذارونه پیل کړه انګریزانو چې ځانونه د پښتنو په منګولو کې راګیر وکڼل – نویې ځانونه دتورو ګذارونو ته ورکړه څو ددغه مغروره (۱۲) زره کسیزه پوځ څخه یوازې (۲۵) تنه هغه هم د پښتنو په کالیو کې وتښتیدل او په کندهار کې یې خپلې چوني ته ددې لویې ماتې خبر وروړ. ددې جګړې شهیدان تر لسو ورځو پورې د دپښتني ځواکونو لخوا ښخ کړه سوه .

چې د هیواد دپوځ په یوه خپرونه کې چې د (اردو مجله) په نوم خپریده د پښتني ځواکونو څخه د شهیدانو شمیر (۱۹۵۰) تنه ښودل سوی دی. چې په هغوی کې (۱۲۵۰) تنه د منظمو لښکرو څخه او (۷۰۰) تنه دملي مجاهدینو څخه وه .

دغو پاکو شهیدانو د ویاړمنې تل پاتې یادونې د پاره د اروښاد وزیر محمد ګل خان مومند لخوا ډیر ښکلی څلی جوړسویدی .

چې دهمدې څلي په نږدې و کې مو د غرمې وروسته (۲ نیمو) بجو په شاوخواکې د ماپښین لمونځ د مطمیئن صاحب په امامت سره تر سره کړ وروسته ږغ وسو چې ډوډی تیاره ده ډوډی به د غونډې د پیل کیدو دمخه وخورو دټولو وروڼو همداسې خوښه وه درو بجوته ډوډی دخورو دپاره راوړه سوه کم چې لګښت یې د اطلاعاتو او کلتور ریاست لخوا برابر سوی و وروسته میوه هم وخوړه سوه .

د ډوډی څخه چې وزګار سوو نو دغونډې د پیل کیدو هڅې پیل سوې د وینا اوروني ځای جوړ سو - د وینا وو او شعرونو د ټیپیدو دپاره ټیپونه او چمتوړې (فیتې) کښیښول سوې.

د ماپښین څه کم څلور بجې وې چې نیازی صاحب د ویندوی په توګه د وینا اوروني ځای ته ودرید او پخپل خواږه ږغ کې یې ښکلې څلوریځه واورول. وروسته دغونډې بهیر دقاری محمد طاهر ناتوان لخوا دقران پاک د څو سپیڅلو ایاتونو په لوستلو سره پیل سو .

بیا د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئیس (مطمئن) صاحب ته بلنه ورکړه سوه څو خپله وینا دغوندی برخو والو ته واوروی. هغوی هم د خپلواکی د ورځی په هکله هر ارخیزه وینا واورول د وینا په وروستیو ګړیو کی یی د ځلمیو پارکیوالو د پاره د منل سوی شعری تګ لاری په اړه په زړه پوری تو صیی او لار ښوونی وکړی ددوی د وینا تر اورولو وروسته وار تکړه لیکوال انجنیرصاحب عبدالله ګل (ریان) ته ورسید.

هغوی هم دخپلواکی د ورځی په هکله ښه روښانه وړغید د (۱۸۸۰) زیږدیز کال د میوند د جګړی پیښه او هم یی د ۱۹۱۹ زیږدیز کال د خپلواکی پر جګړه ښه رڼا واچوله.

چی دغوندی برخه والو دده وینا په بشپړه توګه واوریده د انجنیر صاحب وروسته نیازی صاحب د وینا د ځای څخه ماته بلنه راکړه څو خپله لیکنه برخه والو ته واوروم.

ماهم د خپلواکی د ارزښت، او د ښتنو په پنځ کی د خپلواکی سره د لیونی مینی د اخښل توب په هکله څه واورول.

وروسته ناتوان صاحب د خپلواکی د جګرو په هکله وړغید. او د ملالی میوندی اتلولی یی په ښه ډول څرګنده کړه.

بیا نیازی صاحب خپلی لیکلی پانی چی هغه هم د خپلواکی د جګړو د ډګرونو په هکله دی پخپل خواږه ږغ کی واورولی.

او بیا یو په بل پسی پیژاند صاحب د خپلواکی په اړه یوه لنده ولی ډیره خوږه کیسه. او د شریعت ږغ راډیو اداری مدیر ښاغلی حاجی عبدالقدیر خپله لنده لیکنه د خپلواکی په هکله ولوستله.

پدی ډول د لیکنو او ویناوو برخه سرته ورسیده او د پارکو برخه پیل سوه.

پدی لړکی لمړی د شعر او ادب د ځانګی مشر، د سرې سینی څښتن او د زیاتو ادبی کارونو سره مینه لرونکی (مینه وال) ته وار ورسید. هغوی پخپل خواږه پارکی سره چی ویل یی (پرون میوند و نن لیلا یادوی) د پارکو اورید نه پیل کړه.

د دوی پسی محمدیار ورور د وینا ځای ته ودرید او (ژوبلوره پیغله) تر سرلیک لاندی یی خپل ښکلی پارکی واو راوه.

بیا هڅیال ورور خپل پارکی چی سرلیک یی و (ستاینه) د غوندی برخه والو ته په شعری مینه سره وراندی کړ.

بیا ښاغلی داوری اخنذاده صاحب خپل خوږ پارکی واوراوه. د داوری اخنذاده صاحب وروسته بیا ماته بلنه راکړه سوه ماهم یو ازاد غوندی پارکی چی د خپلواکی د جګړو په ترڅ کی پښتنی میرانه پکښی انځور سوی وه لوست.

بیا یو په بل پسی نوری شیون صاحب. پتیال صاحب، حسن یار صاحب. انځور یار صاحب، فانی صاحب، پیژاند صاحب او ناتوان صاحب وینا ځای ته راغله او خپل خواږه او ښکلی پارکی چی زیاتره یی دخپلواکی په اړه وه واورول. او په هره برخه کی دبرخوالو لخوا په ادبی مینه سره بد رګه کیده.

د مازدیګر (۵) بجی او دیرش دقیقی وی چی ناتوان صاحب خپل پارکی پرانست کړ او ورسره دغوندی ویندوی وغوښته څو د دوعا په لوستلو سره دا په زړه پوری غونده او دپارکو وینه پای ته ورسوی.

دا مهال د میوند د پیښلیکیزه دښتی له مخه څخه لمر د تولیدو د پاره تیاری نیوی. پر ځای یی دمیوند غرونه ورته ښه راغلاست وایه او د ورځی په اوږ دوکی یی د هغه د وروستی لیدنی لپاره یی پ مینه مینه د هغه د ورتلو لاره څارله.

زموږ غونده هم پرانست سوه.

چای راوړه سوی هغه وڅښل سوی. ځینو ویل د مازدیګر لمونځونه به همدلته وکړو ـ ځینو ویل چی څه مخکه مو پری کړی وای ښه به وای. او لمونځونه به

مو په لاره کې کړې وای. وروسته پریکړه پردې وسوه چې د تللو دپاره سمدستي تیارئ ونیسو.
لوښې او تغران ژر سره تول سوه او د زیارت په لور د نیرا (دوعا) تر کولو وروسته یو او بل د زیارت څخه سره راووتلو.
انجنیرصاحب _ نیازیصاحب _ اسحاقي صاحب _ حاجي عبدالقدیرخان. (شیون)صاحب حاجي عبدالرشید د وګرنیز کتابتون مسول عزیزخان عزیزاو د اطلاعاتو په ریاست کې کمپیوتر چلوونکی هریو ښاغلی عبدالحکیم صاحب او ښاغلی محمداکبر (بریالی) صاحب زماسره په موټر کې را سپاره سوه. او نور پاته ملګری په همهغه سهارنی سره مینی بس کې سره سپاره او ځای پرځای سوه. موږ د مازدیګر لمونځونه و بازار ته نږدې د څلویښت ګزی کاریز پر غاړه وکړه. او بیا د میوند دبازار څخه لویدیځ په لور ور تیر سوو دملګرو څخه می وغوښته چې د بازار په لویدیځه څنډه کې کې زه د (بابیانو) پر کاریز یو پنځه دقیقې د کار درلودلو له امله تاسوته څنډ درکړم ځکه به سې. انجینر صاحب د نورو په استازیتوب وویل هیڅ نه پکښې وایو.
هلته چې ورغلو د مابنام لمونځوته څه په شمار شیبې پاته وې. ما خپل کار پر هغه ځای د میشتو کسانو سره تر سره کړ هغوی دشپې پاته کیدوته ټینګ وه خو موږ ورته وویل نسو پاته کیدای. او خینی رارهی سو بیا بازار ته په ورتګ و چې د بازار په وروستی لویدیځه څنډه کې د تیلو د پلورنځي تر ارخ د نوی جورسوی مسجد څخه د مابنام دلمونځو دپاره اذان سپیځلی کلمه زموږ تر غوږو سوی موټر مو د سرک پر غاړه ودراوه او هلته مو لونځونه وکړه.
نور نو بیله څنډه د ښار په لور راوخوځیدو یوازې مو د منديګک د مانده په سر باندې چې دمیوند د بازار ختیځه څنډه کیږې په ګډه یو ګنډ کړئ د یخنو اوبو په چښلو باندې تیرکر.
اونور مو نو تر ښاره دریدنه نه ده کړې.
دغوندې خبر مو په لاره کې د کندهار د شریعت رغ له څپنو نه واوریډ. چې د (مطمین) صاحب لخوا ترتیب سوی و څکه هغوی زموږ نه مخکې ښارته رارهی سوی وه.
موږ هم لوی لوی کلی او سیمی لکه حوض مدد _ سنګحصار، اشوغی، سنځری او کوهکران یوپه بل پسې تر شا پر یښودل. د (میرویس مینی) . (ادی) او (سرپوزی) څخه هم راتیر سوو کندهار ښار د کجکی په برښنا باندې سره غور څکه و (د ند) څخه (نوی ښار) ته راغلو د نوی ښار څخه د ملګرو کښته کیده پیل سوه.
د شپې د (۹) بجو شاوخواوه چې پاته اندیوالان می د اطلاعاتو او کلتور دریاست په مخ کې له مو تره کښته کړه انجینر صاحب. نیازی صاحب او حاجی عبدالقدیر خان بلنه راکړه څو دمابنام ډودی ددوی سره وخورم خو ما یې له پیرزوینی څخه مننه وکړه او خدای په امانی می ورسره وکړ او ددوی څخه رارهی سوم.
پدې ډول دا خوږ او زموږ په ککریوکی تل پاتی یون پای ته ورسید.

# د خدمت په لار کې هوس، ستر خنډ دی

ملا احسان الله «عارف»

د انسان د خپل ځان او د جامعې د خلاصون او فلاح لپاره انسان ته په کار ده چې څومره وس او توان لوی خدای (ج) انسان ته ورکړی وی ؛ انسان باید کوشش وکړي چې د ځان او د جامعې لپاره یو داسې لاره غوره او پیدا کړي چې هغه لاره د ده او د جامعې لپاره د خیر او برکت لاره وی خو په دنیا کې الله (ج) د خپلو بندګانو د بندګی لپاره ډیرې غوره لارې پیدا کړی دی چې انسان کولای شي چې د دغو لارو څخه د ځان او د جامعې لپاره څه وکړي او ځان او جامعه د خدای (ج) په لاره باندې برابره کړي خو په دغو لارو کې ځینې داسې لارې شته چې اول انسان په دغه لار باندې په ډیر خلوص سره قدم کښیږدي او دغه لاره د خپل ځان او د جامعې لپاره د خلاصون ځانګړی لاره وبولی . خو په دغه نیکه او سپیڅلې لار کې د لوی دښمن چې شیطان دی ؛ د هغه د سختو ګذارونو سره مخامخ کیږي که چیرې انسان د خپل دغه لوی دښمن سره په دغه سپیڅلی ډګر کې په پوره ایمانداری سره مقاومت ونکړي نو دغ سپیڅلی لار به د انسان د هلاکت سبب وګرزی لکه یو شخص ته چې الله (ج) د چوکۍ او قدرت منصب ورپه برخه کړی وي او دا سړی کولای شی چې د خپل ځان او د جامعې لپاره د دغې لارې څخه خدمت وکړي او دغه خپل قدرت په سمه لار باندې مصرف کړی او ځان و دې ته لیواله او چمتو کړي چې د شیطانی ګذارونو مخه ونیسی .

او د نفسی خواهشاتو له لورې مخ د خپلو اعمالو د اصلاح په لوری باندې واړوی او د ځان سره دا فیصله وکړي جې زه به خپل قدرت په هغه لار باندې مصرف کوم ؛ کوم چې الله (ج) او د الله (ج) رسول راته ښودلی دی . نو دغه سړی یقیناً کولای شی چې خپل ځان او خپله جامعه وساتی او د خپلې جامعې لپاره خدمت وکړي او خپله جامعه له دنیوی افاتو څخه خلاصه کړی او دغه دنیا د آخرت لپاره یوه د نیکی ذریعه وګرزوی .

خو موږ او تاسو ولیدل چې ډیرو خلکو ته الله (ج) د دې توان او قدرت ورکړی ، چې خپل ځان وژغوری او د جامعې لپاره خدمت وکړي .

خو کله چې قدرت ته د رسیدلو خلګو د نفسی او شیطانی خواهشاتو وطرف ته میل او رجوع وکړه او د دوی خپل ځان د اختیار څخه ووتی او دوی خپلو بد کارونو ته ښه وویل او زړونه یې د شیطانی او نفسی خواهشاتو په پردو کې ونه غوښتل شول نو په دغه وخت کې موږ او تاسو بیا ولیدل چې دغو خلکو د جامعې لپاره خدمت خو لا څه ، چې ځان یې هم د خدای (ج) په لاره برابر نکړ . نو دا ثابته او تر لمر روښانه خبره ده چې کوم وخت الله (ج) سړی ته قدرت ورکړي ضرور باید د ځان سره دا فیصله وکړي چې د شیطانی او نفسی خواهشاتو څخه ځان لری وساتی او کوم قدرت چې الله (ج) ورکړی دی ؛ د خدای (ج) په لار کې استعمال او د خدای (ج) رضا وځان ته حاصله کړي او دغه قدرت د خدای (ج) د رضا لپاره یو واسطه وګرزوی .

هسی خو په دنیا کې ټول اعمال وسیله او واسطه دی . اصلی هدف او مرام خو په زندګی کې د الله (ج) رضا ده ، وبس .




# د معلم خولۍ

## طنزيه داستان

داسې شپه به نه وه چې زمونږ په کلي کې به چغال يوه چرګه نه وه خوړلې، سهار مهال چې به دکلي خلک دلمانځه وروسته دمسجد تر مخ ويښتا وي ته سره راټول سول نو دنورو خبرو تر څنګ به دچغال په اړه هم شکايتونه کيدل.

چا به ويل: تيره شپه بيا زمونږ کورته چغال راغلی وو او هغه زما پر کولنګي چرګ ئې حمله وکړه دخدای فضل وو زما دخوب کوټه دچرګانو وډلي ته نږدې وه دستي دچرګ په کفارې دخوبه راويښ سوم او دسرای غولي ته راووتم، توره تږمې وه زما هم سترګې دخوبه وې چنداني مې شی نه ليده خو دومره مې وکړه چه پښتی او لاسونه مې پسې وټکول اوپه زوره مې هاها کړل چغال هم وبيريده چرګ يې پريښود و تښتېد

چرګ چې مې را واخيست ايله سا پکښې چونيدله، بس سږې دوته په پوهيده چې ژوندی دی، ما هم دغسې چړې ته لاس کړ او حلال مې کړ.
بل به ويل: ياره ته خو لانبه يې حلال خو دي کړ، غو ښي خو يې په ښه درغلې موږ وګوره چې داموږ دريمه چرګه ده چې چغال يې راڅخه خوري
بل کلپوال به هم دی ته ورته شکايت دړلود. چغال به دشپې دکلي چرګان خوړل اودورځې له خوا به دکلي دشاوخواباغو په يوه ګوښه ځای کې پټ وو هغو بزګرو چې دکلي په شاوخوا باغونوکي په يې کارکاوه کله کله به چغال وليد نو لاسونه به يې سره وټکول او په زوره به يې ناري کړې: هلئ چغال دی! درغی مه يې پريږدئ !هله پلانيه ستا وخوا ته درغی!

ولو کليوالو هڅه کوله چې چغال ووژني اويا يې ژوندی ونيسي اوخپل زړه په سوړ کړي

خو يوه ورځ يو چا دا چغال ژوندی ونيو او دکلي هغو خلکو ته يې وړاندی کړ چې دمسجد تر مخ به راغونډيدل. چا به ويل يوځای يې کلک وتړئ، هيڅ خواړه مه ورکوئ چې دلته دلوږی مړشي. بل يوه به بيا ويل: راځئ چې دکلي ټول سپې راولو او ورايله يې کړو چې ځای په ځای يې انډياری کړي

لنډه داچې دچغال دسزا په سهکله به ډول ډول لاري ليکي وړاندی کېدې چې په دی وخت کی يو معلم چې پر يوه زاړه بايسکل باندی سپور وو راښکاره سو.
معلم پينه پينه دريشي اغوستې اويوه شوړيدلی دقره قل خولۍ يې پر سر وه، ډير ستړی اوسايې په اوږو شړله داسې ښکاريده چې دډير ليري ځای څخه به راغلی وي. دمعلم په ليدو ټولو په ګډه وويل هغه دي معلم صاحب راغی. راځئ چې دی هم وپو ښتو چې چغال ته څه ډول سزا ورکوی.

ده هم خپل زوړ بايسک چې پايه يې نه درلوده ديوال ته تکيه کړ اودروغبړ څخه وروسته خلکو دچغال قيصه ورته وکړه. معلم هم سم دلاسه خپله دقره قل خولۍ دسر څخه ليری کړه دچغال په سر يې ورکښيښوله اوبيا يې بيرته خپله پر سر کړه او کليوالو ته يې وويل چې اوس نو چغال پريږدئ چې ولاړسی.

کليوالو شور اوغوغا جوړه کړه چې معلم صاحب داڅه وايې موږ په څه زحمت داچغال نيولی دی اوته يې بيرته ايله کوې!معلم وويل: هم دومره سزا يې بس ده چې د معلم خولۍ يې پر سرسوه. نه به په ټوله ژوندکی دی اورزق سره پيداکړي اونه به بيا ستاسې چرګان وخوري.

# ذهني ازموينه

ترتيبونكى: عبدالجبار ترنگ

| ۹ | ۸ | ۷ | ۶ | ۵ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | ■ | | | | | | | ۱ |
| | | | | | | ■ | | | ۲ |
| | | | ■ | | | ■ | | | ۳ |
| | | | | ■ | | ■ | ■ | | ۴ |
| | | ■ | | | ■ | | ■ | | ۵ |
| | | ■ | ■ | | | | | | ۶ |
| ■ | | | | | | | | ■ | ۷ |

افقي:

۱ - دمحمدولي خلمي مشهور اثر ـ كلي ته هم وايي په (شاعرى كښې).
۲ - دخوښې په وخت كښې يې خلگ وايي ـ په پښتو كښې دوه لارى ورته وايي.
۳ - دوپنځوس چې سره يوشي ـــ ير
۴ - هيله او اميد ـــ .
۵ - دتو قف لپاره ويل كيږي ـــ دوه حرفه ـــ
۶ - په ژمي كښې اورى په شمالي برخوكي
۷-عكس يې په لس زرى نوټو كښې وگورى

عمودي:

۱ - دسر بيانو سره په شخړه اخته دى
۲ - اس اوخرو ته په كاردى.
۳ - اوږد غاړى حيوان
۴ - ډالى هم ورته په پښتو كېوايي او په درى ژبه كې كوڼ ورته وايي.
۵ - په دوزخ كښې يې ولټوى.
۶ - دوه حرفه ـ په ځغستلو كښې اول دى.
۷ - اگر خپل منځني حرف په لږ تفاوت سره
۸ - دسرپو زى سره يې ولټوى.
۹ - دده گنبده هم هلته ده

يادونه:

گرانو لوستونكو!

ددى ذهني ازمويني دخوابونو راليږلو ته دكندهار مجلې اداره سترگى په لاره ده

## بخښنه !

په تأسف سره باید ووایو ، چي د مجلي د پښتۍ د انځورونو په پیژندنه کي اشتباه شوی ، او د پیژندني توري یی یو د بل پرځای چاپ شویدی . یعنی د لمړی عکس پیژندنه په هغه ټکو کیږي ؛ چي له دویم عکس سره لیکل شویدی . او د دویم دا په هغو چي له لمړی،سره لیدل کیږي .

هیله ده ، گران لوستونکی زموږ معذرت ومنی .

«اداره»








# Kandahar

**Information & Culture Department**

Bi - Monthly Magazine

Est. April 1960

Vol. : No: 3 (August-September - 1999)

په کندهار کي د نويو جوړی شويو ودانيو يوه بيلګه